# ترون

د خپلې ګرانقدرې او خوږې مور په نوم د چا په غېږه کښې چې ما پښتو ژبه ایزده کړې ده او د چا د مینې په تصور چې زما د ټولو خوشحالو او راحتونو دنیا وادنه ده.

# پېژندګلوي

په پښتو ادب کښې د جديد تخليقي نثر اغاز د
روانې صدۍ د شروع نه شوے وو. په دې سل کلنې دور
کښې د ډرامې، ورې قيصې او ناول مختلف قسمونه او
کاوشونه مينځ ته راغلل. ولې د دې هر څۀ شمېر دومره
حوصله افزا نۀ دے چې مونږ ئې د يوې ژبې د ادبي ذخيرې
په لړ کښې پوره د يوې صدۍ د کار برابر اوګڼو. خصوصاً د
ناول په سلسله کښې خو ډېر کم کار شوے دے. د دې شاته
چې هر څۀ وجوهات او عوامل دی هغه په خپل ځائے ځانله يو
اوږد بحث دے.

د ترقي يافته ژبو په نثری ادب کښې ناول يو ډېر اهم
او لوړ مقام لرئ. د دې وجه دا ده چې ناول د تخليق په لحاظ
سره د نثر يوه اعلیٰ نمونه او د ژوند د مختلفو اړخونو
عکاسی کونکے يو کثيرالکردار صنف دے. ناول د ژوند
قصه ده او حقيقت هم دا دے چې دا د قديم دور د قصه
ګويئ يو جديد ترقي يافته شکل دے.

قصه او قصه ګونی د پښتنو د روایاتو یو نه هېرېدونکې باب دے. بنیادی طور پښتانهٔ په قصو یو منین قام دے. د دهٔ د پرورش د اغاز نه واخله تر سپینې ږیرې د اخری عمره پورې د قصې اورېدو او قصو وئیلو ذوق نهٔ ختمېږی. لیکن بیا هم د حېرانتیا یو غټ مقام دا دے چې په قصه لېونی مئین پښتون قام د ادب په دې صنف کښې هم هغه هومره پرمخ تګ او د ناول زېږون اونهٔ کړو څومره چې د دهٔ د فطری ذوق تقاضا وه.

زهٔ به دې عمل ته د حېرانتیا مقام نهٔ بلکې د افسوس او د خپل ادب د بدنصیبۍ نوم ورکړم چې په پښتو کښې د نثری ادب د نورو اصنافو په مقابله کښې نسبتاً ناول پله ډېره کمه توجه ورکړې شوې ده. نهٔ پوهېږو چې د دې لیکونکی نشته او کهٔ د قیصو لوستونکی قحط شو. زما په خیال خو دواړه نشته.

په پښتو ناول کښې د ګوتو په شمار څو کسانو کار کړے دے په دې کسانو کښې یو نوم د سوات محمد ابراهیم خان شبنم صېب هم شامل دے. چا چې پښتو ادب ته د ناول دا دوئمه پېرزونه ورکړه. د دې نه مخکښې شبنم صېب پښتو ته خپل شهره افاق ناول "خوابښې انګور" ورکړے وو. کوم چې تر یوې مودې پورې د ایم اے پښتو په کورس کښې هم شامل پاتې شوے دے.

اجړه د ابراهیم خان شبنم دویم ناول دے د شبنم

صېب غتبه فنکاري دا ده چې د هغۀ د قلم رسائي د ژوند مسئلو او د خپل کلتور د روزمره لويو وړو معاملو ته نېغ په نېغه دومره د نږدو نه حاصله ده چې د هغې نه د شبنم صېب د ذاتي تجرباتو او مشاهداتو اندازه پخپله لګېدے شي.

دوئمه د ذکر وړ خبره دا ده چې شبنم صېب ته د ناول غوندې د ژوند د هر اړخيز صنف د مختلفو کردارونو د هر کلاس ژبه ډېره ښه او سوچه ورځي. کوم چې پۀ يقيني ډول د ناول د کاميابې قصې روح ګڼلے شي. دا صنف د شبنم صېب پۀ دواړو ناولونو کښې جوت ليدے شي. او د يو ښۀ ناول پۀ اجزائې ترکيبي کښې لازماً دا د کاميابي يو جز ګڼل پکار دي. د کتاب ليکوال پخپله د دغې چاپېرچل سره تړلے هم د دغه کردارونو د سماجي ژوند يو نمائنده کردار دے

د يو شاعر او اديب اولنے هدف دا وي چې هغه د ټولو نه اول د خپل ګېر چاپېره ژوند د معاشرتي حالاتو نه اثر اخلي. پۀ اجړه کښې مصنف د يو داسې سماجي ژوند د مخصوصو طبقو عکاسي کوي چې هغه کۀ زمونږ په عام ژوند کښې ډېر کم رونما کېږي خو بيا هم د داسې واقعاتو پېښېدو حقيقت څۀ غېر يقيني او غېر حقيقي خبره نۀ ده. شبنم صېب د يوې داسې علاقې اوسېدونکے شاعر او اديب دے چې د دې ناول د قيصې د معاشرتي ژوند ننداره د هغۀ د پاره يوه عامه خبره ده.

اجړه يوه عامه ساده خانه بدوشه پېغله ده خانه

بدوش یا نومېډ (Nomad) پهٔ هر حال زمونږ د معاشرې یوه برخه او زمونږ د قامي ژوند داسې کردارونه دي چې هغوئ کهٔ نېغ په نېغه زمونږ پهٔ معاشرتي ژوند کښې دننه نهٔ دي نو پهٔ څه نهٔ څهٔ شکل کښې خامخا زمونږ پهٔ سماجي حالاتو اثر انداز دي. خانه بدوشي د پښتنو نه علاوه د نړۍ پهٔ نورو ملکونو او قامونو کښې هم موجود دي. د دوئ پحقله ډېر څهٔ لیکلي شوي دي. زهٔ د پښتو ادب د پاره دا یوه خوش بختي ګڼم چې د یوې خانه بدوشې پېغلې د ژوند پحقله د شبنم صېب د دې کتاب نه مخکښې د مشهور پښتو ناول نګار میان سید رسول رسا ناول "خودکشي" هم د دې نوعیت یوه قصه ده. کوم چې پهٔ پښتو ادب کښې ډېر مقبولیت موندلے دے.

دلته دې اتفاق ته هم اوګورئ چې د رسا صېب "خودکشي" او د شبنم صېب اجړه د موضوع پهٔ اعتبار سره دواړه داسې ناولونه دي چې د دواړو د قیصې مرکزي خیال هم تقریباً یو شان او یو مقصد پله ګرځېدلي دي. پهٔ دواړو ناولونو کښې د خانه بدوشو جینکو د قدرتي حسن د سادګۍ. وفادارۍ او غیرت داسې نقشې راښکلې شوې دي چې د خپل کډو وړو د سفر پهٔ دوران کښې دواړه جینکۍ د اوچتو کورنو تعلیمیافته زلمي تش د یو جادو نظر او یو وار کاتهٔ سره پهٔ خان داسې لېوني مئینوي او بیا هم د خپلې مینې پهٔ پت کښې د خپلو مئینانو د پاره د خپلو سرونو

داسې عظیمې قرباني ورکوي چې د هغې نه د خانه بدوشو جینکو د قامي حمیت او پت اندازه په اسانه لګېدے شي.

په تکینکي لحاظ سره د دې ناول ځینې کردارونه کمزوري دي او په ځینې ځایونو کښې ئې مکالمې هم د پلاټونو سره خلط شوي دي. لیکن د دې خامو باوجود د ناول قصه دومره خونده وره او ژبه ئې داسې خوږه ده چې د شروع نه واخله تر د کتاب د اختتامه پورې ټوله قصه خپله دلچسپي او مزه ختمېدو ته نۀ پرېږدي.

دا ټولې نکتې او خبرې په خپل ځائے دي. خو مونږ د ابراهیم خان شبنم صېب غونډې یو پښتون لیکوال ته په دې وجه داد او ډاډګېرنه ورکوو چې هغوئ په پښتو ادب کښې د ناول غوندې یو نایابه صنف لیکلو ته توجه ورکوي او د پښتو ادب جولۍ د دې ګوهر نایاب نه ډکوي. خدائے دې اوکړي چې نور پښتانۀ لیکوال هم په دغه پل روان شي.

رحیم شاه رحیم
مینګوره سوات
۱۷ اپریل ۱۹۹۴ء

# شپونکي

د ماښام تیارۀ خوره شوه. شوکت او دلدار رخصت شول. اجړې زر زر لرګی راټول کړل. مور ئې اوړۀ واغږل او تبۍ یې پۀ اور کېښودله. ګډې بېزې د ګبر چاپېره راغونډې شوې او ستړې ستومانه پرېوتلې د ډوډو د ټپ ټپ اواز راځی. د اجړې پلار او چنغول خشاکے سره د سپو د ګټې راغلل. پۀ شاګانو تړلی پیټی ئې اوغورزول. لمسی ئې خوارۀ کړل او خپلو خپلو سرونو ته ئې د بالختونو پۀ ځائے ګټې کېښودلې. خشاکی زر زر ګډې بېزې شمار کړې. سپی ئې اوسپړدل د اجړې مور ډوډۍ تیاره کړه او خشاکی بیزې اولوشلې یو ځائے ته شپونکیان راغونډ شول او پۀ ډوډۍ کښېناستل پۀ خپل مینځ کښې ئې خبرې شروع کړې لاجبر د اجړې پلار خپلې ښځې (خړې) ته اووې.

**لاجبر نانا:** یره خړې تاسو نن پـه لارې ډېر وخت یو دوو زلمو سره ولاړې وئ. او خبرې مو کولې. دا څوك وو او څۀ یې وې؟.

**خشاکے:** څۀ به ئې وې خو چرته د ګډو بېزو سوداګران به وو کنۀ کاکا.

لاجبرنانا سوداګران خو نهٔ ښکاریدل ځکه چې خبرې
نې ځهٔ ډېرې اوږدې غونډې وې او بله دا چې کهٔ چرې
سوداګران وے نو خبرې به ئې زمونږ سره کړې وې.
اجړې او خړې یو بل ته پهٔ سترګو سترګو کښې
اوکتل او اجړې روغونډې اووې.
اجړه: بابا دا تا او نهٔ پېژندل څهٔ؟
لاجبر: نهٔ یره ما څهٔ پېژندهٔ پردی زلمی وو. څوك بهٔ وو نو؟
اجړه: ما ترېنه تپوس کړے دے پهٔ هغوئ کښې سپینو
جامو والا اووې چې زما نوم شوکت خان او د هیبت خان
زوے یم
لاجبر: هن د هیبت خان زوے شوکت
او د دې سره خاموش غونډې شی.
خشاکے: ولې کاکاجی غلے ولې شوې؟ دا څوك وهٔ؟ او مونږه
ئې څنګه پېژندو؟
لاجبر: تهٔ نهٔ ئې خبر خشاکیه! چې دا څوك وهٔ او دوئ زمونږ
سره څهٔ کړی دی
خشاکے: څه ئې کړی دی کاکاجی؟ زهٔ خو ترې هډو
خبر نهٔ یم
اجړه: تهٔ د څهٔ نه خبر ئې بیزې لوشه او ګډې سروه سپی
تړه او پړانسزه
خشاکے: یو خو نه اجړې هډو مچ پهٔ پوزه نهٔ پرېږدی

پهٔ هره خبره به راته ایغه نېغه ولاړه ئې لکه چې بڼ مې نې بڼ یا مې درسره دشمنی وی او یا چې دې چا پلار وژلے وی
اجړه. او کنهٔ اصلی خبره هم دا ده چې چا د چا پلار وژلے دے.

خشاکے: چا وژلے دے؟ او د چا پلار؟

اجړه: دا قیصه به درته بابا اوکړی. تهٔ لا وړوکے ئې

خشاکے: او نو تهٔ خو سمه د سلو کالو زړه ښځه ئې نو

اجړه: د سلو کالو نهٔ یم خو خبر ضرور یم

خشاکے تهٔ اوس چپ شه ډېره مهٔ جې کاکیاچې خبره اوکړی.

لاجبرنانا یو سوړ اسویلے اوکړو او د لاس نه خولئ ته کړې نوړی ئې واپس اوغورزوله ژړغونے غوندې شو مری ئې غړېب اونیوله او غلے شو

خشاکے څهٔ چل دے او څهٔ شوی دی؟

لاجبر تهٔ وړوکے وې خشاکیه: ستا مور دې خدائے اوبخښی ستا د پېدا کېدو پهٔ پنځمه ورځ مړه شوه ستا د پلار سل زوے نهٔ وهٔ. سپوا ستا نه کهٔ فکر وکړې بچیه نو دا گرځېدهٔ، راګرځېدهٔ زمونږ پهٔ قسمت دی کله ښکته او کله پورته. د ژمی پهٔ موسم مونږ ګډې بیزې ښکته بوتلې وې واپس چې پسرلی وال شروع شو او مونږ د ګډو پورته راتلو بندوبست شروع کړو. څهٔ پهٔ پنځمه تېره ورځ

زاروان شو نهٔ د خپل پلار پهٔ اوږد وېږ ما اوخړې ګډې بېزې راشړلې چې دې کلي ته را اورسېدو نو ستا پلار ما ته اووې چې لالا زما نه خشاکے واخله او زهٔ ورځم چې دې کلي کښې چرته چرې. ګدا اوکړم چې اوخورو اوڅښو. ما ورته اووې تاجره ډېره ښه ده لاړ شه خو ناوخته کوه مهٔ. خشاکيه ستا پلار تاجر دې کلي ته د ماښام په وخت وراغے.

د ماښام وخت د ے تيارهٔ خوره شوې وه د کلي کوڅې خاموش. خلق خپلو خپلو کورونو ته تلي دي. او په ډوډۍ خوراك مصروف دي. تاجر د خپل څادر دوه اخري پيسکي يو بل سره د ډوډو د اېښودو د پاره غوټه کړو او دا اواز ئې شروع کړو.

لاجبر ډوډۍ راوړئ خدا ے مو اوبخښه. د لارې مسافر يو ګډې راسره دي. وږې شوې يو. دوه ماشومان بچي راسره دي. الله پاك مو دا خيرات پهٔ اخر پکار کړه. خدائے مو پهٔ خمبو کښې برکت اوغورزوه.

د کلي خلقو د معمول مطابق چانيمه چا ټوك او چا درسته ډوډۍ تاجر له ورکړه. تاجر ښهٔ کافي ډوډۍ جمع کړې. خو انګولے ورته ډېر کم پهٔ لاس وراغے. تاجر پهٔ زړهٔ کښې دا خيال اوکړو. راشه د خان دروازې له ورشم چې انګولے ترې راوړم. تاجر چې وراغے او وړ ئې اوډبولو. پهٔ دروازه کښې د خان يو خاصګير نوکر پروت وهٔ چې نوم ئې

واكدار ؤ

**واكدار:** هلكه شپونكيه څهٔ كوې څهٔ غواړې. خه حجرې ته لاړ شه ډوډۍ به هلته دروړی

**تاجر:** ماما حجرې ته نهٔ شم تلے مسافر يم. ډوډۍ مې ډېرې راټولې كړې دی. خو يو ماشوم هلك او بوه وړه جينۍ راسره دی. لږ انګولے مې پكار دے. د خان درته راغلے يم كهٔ چرې لږ انګولے ځوك راكړی نو ډېره به ښه وی.

**واكدار:** سر مې مهٔ خوږوه دلته دا طريقه نشته چې څوك په دروازه كښې كښېنی او څهٔ اوغواړی ستاسو شپونكيان ډېر كم عقل خلق يئی. هغه چا رښتيا وئيلی دی چې د غرهٔ عالم نهٔ عالم. ځه لاړ شه هلته په حجره كښې كښېنه انګولے او ډوډۍ به دواړه دروړی.

**تاجر:** ماما تهٔ د سړې سينې او مړې خېټې خبرې كوې په ما ناوخته دے زهٔ وايم چې څهٔ تيار وی هغه د خان سره واخلم چې ځم. زر د پاچا تماميږی. او كونه د بنډ غار شلېږی. خان كاكا ګورے داسې وائی او كنهٔ خو تهٔ ئې چې د بتۍ غركی نه غرنګ اوباسې.

**واكدار:** تهٔ خو هډو په سرېتوب نهٔ پوهېږی زهٔ درته يو څهٔ وايم او تهٔ په نورو خبرو سر شوے ئې څه كنهٔ اوس به دې يو دوه درې لتې اوهم ځرمن به دې اوباسم.

**تاجر:** ماما ستا ماسره د ځرمنې ويستو څهٔ كار دے كهٔ

نکړلے راکوي نو بنه کهٔ نهٔ راکوي نو بیا زهٔ لاړم خو بنه په زړ چې غریب یم پهٔ کومه کومه کوځه کښې به اوازونه کوم چې انکولے راکړي نو ډېره به بنه وی هسې دې وخت خراب کړو تر اوسه به دې رخصت کړے ووم

واکدار تر اوسه دې څهٔ وې او اوس څهٔ دے کله چې زر د پاچا تمامېږی اوکونه د بندهٔ غار شلېږی تهٔ څهٔ سپی زوے ئې او کهٔ د سړی خبرې هم خرابې کوې او بیا انکولے هم غواړې ارځائی مېلمه زما کور دے او تهٔ ښه سکې سپورې خبرې کوې

د دې سره سره واکدار راپاسېدهٔ او پهٔ تاجر ئې د ئې دوه ګزارونه اوکړل هغه زوړ شو د کلی محلت خلق راغونډ شول د حجرې نه هم خلق راغلل د دې شور زوږ په اورېدو سره هیبت خان پهٔ منډه منډه راغے چې څهٔ چل اوشو وخت ډېر تېر شو زما په زړهٔ کښې تلوسه تېره شوه چې تاجر راغے څهٔ چل دے هلك سړے دے هسې نهٔ چې د چا سره ئې څهٔ شر سدت کړے وی ما خړې ته اووې چې خړې تهٔ خنکی او اجړې ته ګورهٔ زهٔ پهٔ منډه ورځم چې تاجر ولې دومره ایسار شو

بجه زما زړهٔ رغړېدلے وهٔ هر کله چې زهٔ د کلی سنخ ته اورسېدم نو زوږ مې تر غوږ شو د کلی ټول خلق راغونډ شوی وو او د خان د دروازې په مخکښې لکه د

قیامت د ورځې خلق ولاړ وو حېران شوم چې څهٔ چل دے
چې ما او کتل نو د خان هغه نوکر چې واکدار ئې نوم وهٔ.
لوړې لوړې خبرې کولې او اواز ئې دا رانګه راتلو

واکدار: خان صېب زما ئې ډېره بې عزتي کړې ده دا
زهٔ نهٔ شم برداشت کولے. زهٔ چې راغلم نو دې تسپوکې بې
غېرته سر پهٔ دروازه دننه کړے وهٔ. او کور ئې سينکولو م
ورته اووې هلکه څوك ئې او څهٔ کوې. دهٔ اووې چې انګولے
غواړم ما ورته اووې حجرې ته لاړ شه انګولے او ډوډۍ به
هلته دروړی. خو دهٔ هرګز زما خبره اونهٔ منله او داسې بد
کنځل يې راته اوکړو چې هغه زهٔ پهٔ خپله خلې نهٔ شم وئيلے
او ډېر ئې خفه کړے په دې يم چې پهٔ دروازه ئې سر دننه
کړے وهٔ. د يو پښتون او بيا د يو خان د کور بې عزتي ئې
کړې ده.

هيبت خان: ستا څهٔ مطلب وهٔ شپونکيه چې پهٔ دروازه
کښې دې سر دننه کولو.

تاجر: خان کاکا زما دې قسم وی چې دا هر څهٔ دروغ دی.
دهٔ وې حجرې ته لاړ شه او ما وې چې واړهٔ راته پهٔ لاره کښې
ناست دی تادی مې ده ډوډۍ راسره ډېره ده خو لږ انګولے
مې پکار دے او د دې خبرې سره راباندې راپاسېدلے دے.
د ده درې لتې ئې هم اووهلم او کنځل يې راته ډېر اوکړو.

واکدار: دوه درې لتې به مې نهٔ وهلې څهٔ چې تا زما

ګرېوان نه لاس واچولو. بله چاره زما څۀ وه. تا سو دا خلق اوس د خوده وتلی يئ. پخوا به مو لکه د خرو. سپو ګذاره کوله کۀ چا به هر څومره وهلئ کنځلئ نو هومره به يو لکه د سپی لکۍ خوزوله او اوس خو دومره مست شوی يئ چې د هرې خبرې جواب لکه د غرګی سړی له ورکوئ.

**تاجر:** څۀ مې وئيلی دی ماما! او څۀ مې کړی دی.

**واکدار:** نور به دې لا څۀ وې او څۀ به دې کول. زما ګرېوان ته دې لاس واچولو. ګذارونه دې راباندې او کړل د خان د کور بې امنی دې وکړه. ستا نور څۀ مطلب دے کلے رانه اخلې کۀ؟

**هيبت خان:** نو لا صبر ورته کوې اولې ئې نۀ؟ اوله يې دۀ زما د کور بې امنی کړې ده.

زۀ يو ګوټ ته غلے اودرېدم. د خدائے په چارو مې لاس نۀ رسېدۀ. زړۀ مې اودرزېدۀ لاس پښې مې اورپېدې خو هيڅ مې نۀ شو کولے. د هيبت خان د حکم تعميل اوشو هر چا په تاجر ګذارونه اوکړل چا د ګټ او چا د لوړ. پکښې د يو ډز اواز هم راغلے او څۀ وخت پس چې خلق خوارۀ شول. زۀ لکه د مسافر وراغلم چې ما اوکتل نو تاجر پۀ وينو کښې لت پت مړ پروت وو.

خشاکيه! دا غم مې د زړۀ نه نۀ اوځی ظاهری دشمن خو واکدار دے خو اصلی او عملی مجرم هيبت خان دے.

زۀ د ويرې نه غلے راغلم. دا مې هم نۀ شو وئيلے چې دا زما رورو دے. د خان د دروازې مخکښې پۀ ډېران پروت مړ وورور زما نۀ هېرېږی چې زۀ راغلم نو واکدار ناست وۀ پۀ مائې غږ اوکړو.

**واکدار:** هلکه څوك ئې څۀ كوې څۀ كار دې دے.

**لاجبر:** مېلمه يم صېب ډوډۍ مې نۀ ده خوړلې.

**واکدار:** ښه ده څه حجرې ته لاړ شه ډوډۍ به درورې

زۀ حجرې ته راغلم خلق خاموش غوندې وو. او خان پۀ درانۀ اواز خبرې كولې.

**هيبت خان:** د داسې خلقو سره هم داسې كار پكار وی چې بيا بل څوك داسې نۀ كوی او د دۀ انجام نه مطلب واخلئ. دا اوس خو داسې زما نه راغلې ده چې هر سړے د نواب زوے دے. هر سړی پښې د څادره بهر كړی دی زۀ خو وايم چې اور پرې بل كړئ چې رنګ يې اونۀ ليدے شی.

مېلمه تۀ څوك ئې او د كومه ځايه راغلے يې.

**لاجبر:** خان مسافر يم اوږے شوے يم كۀ لږه ډوډۍ ملاوېږی نو...

**هيبت خان:** تۀ هم شپونكے ئې جوړې. كۀ چرې دغه دوس دې اولمبولو يا دې چرته يوړو نو ډز به دباندې اوكړم.

**لاجبر:** يره خان زۀ پرې څۀ كوم څوك به وی او لمبولو ته ئې څه حاجت دے. څوك ناكاره سړے به وی. چرته يو ډوغل ته

ئې ارتاؤ کړئ.

هيبت خان: ورشئ دې سړى له ډوډۍ راوړئ.

ډوډۍ راوړے شوه خو زما کله تېرېده مرۍ مې اوچه کلکله وه. غريب نيولے ووم. ورور مې پۀ ډېران مړ پروت وۀ. او خلقو ورته بدې ردې وئيلې. د کلى واړۀ ورته د تماشې د پاره راغونډ شوى وو. خان ماته حکم اوکړو چې دا سړے واخله او پۀ بڼ کښې ئې په سورى قبر کښې ارتاؤ کړه او خاوره پرې واړوه. ما د ويرې نه هم هغسې اوکړل څۀ رنګ چې خان وئيلى وو. چې د خپل ورور خواله لاړم نو د کلى واړۀ ترېنه چاپېره شوى وو. چا به ورله پۀ غوږ کښې ډکى وهل او چا به ورله پۀ سترګو کښې هر کله چې ما خپل رور ښخ کړو نو دا وعده مې ورسره اوکړه چې کۀ چرې ما پۀ خپل ژوند کښې موقع بيا مونده نو دا بدله بۀ د هيبت خان نه اخلم. خو لا تر اوسه داسې موقعه نۀ ده ترلاسه شوې.

خشاکے: کاکاجى دا خو ډېره ښه موقعه وه تا به ماته وئيلى وو کنۀ اوس به مې د هغه د زوى نه بدله اخستې وه.

لاجبر: بچيه داد تادى او دجوش خبره نۀ ده د هوش خبره ده.

اجره: دا بدله به زۀ واخلم. خو کۀ چرې....

خشاکے: څه ورکه شه ښځو کۀ ګټه کولے شوے نو بنګړى به ئې نۀ په لاس کول.

لاجبر: دا مۀ وايه بچيه! ښځه چې کوم انتقام اخستے

شی نو دغه شان سړے نهٔ شی اخستے.

خشاکے: څنګه اجړې ته په څنګه بدله واخلې؟

اجړه: زهٔ په بدله ډېره پهٔ اسانه واخلم خو تهٔ به یو شرم بل برداشت کوې.

خشاکے: هغه څنګه؟

اجړه: هغه دا چې اوس ستاسو د رارسېدو نه مخکښې شوکت د هیبت خان زوی ما سره د محبت اقرار اوکړهٔ او د داسې مینې اظهار ئې اوکړو. چې ماسره ئې د وادهٔ کولو لوظ اوکړو. اګر چې د هغهٔ ملګری ډېر منع کولو. خو د هغهٔ پهٔ زړهٔ کښې زما رنګ داسې مینه پیدا کړې ده چې پهٔ هیڅ صورت نهٔ شی بدلېدے اوس د هغهٔ صبرېدل زما نه ډېر ګران دی. زهٔ ستا غوختلې ښځه یم. نو زهٔ به د هغهٔ سره وادهٔ اوکړم بیا زما هنر ته ګوره چې زهٔ د خپل کاکا بدله څنګه او پهٔ څهٔ طریقه اخلم.

خشاکے: دا نهٔ شی کېدے اجړې. دا نهٔ شی کېدے چې زما کوژدن کړې ښځه دې د بل سړی پهٔ نکاح لاړه شی.

اجړه: دا د حیرت او فکر خبره نهٔ ده. کهٔ د پلار بدله اخستل غواړې نو د ښځې نه زړهٔ صبر کړه. زهٔ یو جینۍ یم چې د خپل ترهٔ د بدل اخستلو دپاره خپل عزت لوټلو ته تیاره یمه نو تهٔ څنګه یو زلمے زوے شوې چې د خپل پلار د بدلې اخستلو د پاره دا قربانی نهٔ شې کولے. د دې مطلب دا شو

چې ته خپل پلار هېرول غواړې.

خشاکې: پلار مې هم مړ شوی دی او اوس به مې عزت هم لاړ شي. په ډېر لوئے تاوان کښې به راشم اجړې دا به یو داسې زیان وي چې د پوره کېدو به ئې هیڅ درک نۀ لګي.

اجړه: تۀ ډوډۍ اوخوره لږ په ارام شه سوچ پرې اوکړه نو پوهه به شې. په دې کښې زمونږه فائده ده. د خپل ننګ او ناموس د پاره خلق هر څۀ کوي. دا تۀ چې کومې خبرې کوې دا د کم عقلو خلقو خبرې دي. مونږ شپونکیان خلق یو زمونږ د عزت سره څۀ کار دے. مونږ له خو بدله اخستل دي.

لاجبر: خشاکیه! اجړه ښۀ وائی بغېر د دې نه بله لار نشته خو اجړې دا کېدے شي چې شوکت ستا سره واقعی وادۀ اوکړي.

اجړه: او دا زما یقین دے چې هغه به زما سره وادۀ کوي ځکه چې هغه په ما دومره مئین شوے دے. چې زما د خوانه ئې تلو ته زړۀ نۀ وۀ. ما ورته هم د یو ژور محبت اظهار کړے دے. هغه به ضرور زما سره وادۀ کوي. مئین زړۀ هیڅ کله نۀ شي صبرېدے باباجي.

خشاکې: نو چې ستاسو څنګه خو ښه وي هغه شانتې به اوکړو.

اجړه: سحر وختی به دې ځائے نه ځو. ما ورته سپین سر

ښودلے دے. امید دے چې شوکت به هلته زما د پاره راغلے وی. تاسو به پۀ ما پابندی نۀ لګوئ. او زۀ به هغۀ ته د مینې جال خور کړم چې یوازې شوکت نۀ بلکې واکدار او د هغۀ ټوله کورمه به د دې جال نه بچ نۀ شی او پۀ قدم قدم به ترینه انتقام واخلم.

اجړه: اوس پربږدئ دا خبرې ډوډۍ اوخورئ ستړی یو چې سحر وختی بیا تلو ته تیار شو او بله دا چې مونږ له پۀ دې ځائے کښې نور ایسارېدل نۀ دی پکار چې څومره زر کېدے شی نو هومره ښه ده چې سپین سر ته اورسېږو نو د خان زوے به ضرور هلته راځی ما هم د هغۀ مینه معلومه کړې ده داسې زړۀ ئې بائیللے دے لکه د مجنون. هغه به سپین سر ته د اجړې د لیدو د پاره خامخا راځی.

دوئ پۀ لمسو ځملاستل هر یو کس پۀ دې سوچ کښې دے چې څۀ به کېږی چې سپین سر ته اورسو نو شوکت به څنګه راشی. واقعی به هغه راشی د هیچا یقین ته نۀ پرېوتله چې شوکت به سپین سر ته راشی. صرف اجړه پۀ دې پاخۀ یقین وه چې هغه ما د سترګو پۀ غشی ویشتلے او د زلفو په دام ترلے دے چې د هغۀ رشتینې مینه پۀ ما هرې قربانۍ ته تیاره ده هغه به سپین سر ته ضرور راځی.

# د بنو غشي

شوکت او دلدار پهٔ مات زړهٔ کلی ته راغلل. پهٔ حجرې کښې کښېناستل. د شوکت پهٔ زړهٔ د بنو غشی ښخ شوی وو. دلدار ته ئې اووې.

**شوکت:** دلداره روره نن خپل بس راوړه چې دلته شپه اوکړو.

**دلدار:** رابه شم خو کورته ځم بس به هم راوړم او ډوډۍ به هم اوخورم.

**شوکت:** ډوډۍ له چې دلته راشې نو ډېره به ښه وی.

**دلدار:** پلار به مې هم پهٔ انتظار وی. ډوډۍ به هلته اوخورم او بل دا چې د خبرې به هم پهٔ طمع وی او هن رښتیا نو څهٔ به ورته وایم.

**شوکت:** اوس د څهٔ وئیلو څهٔ حاجت پاتې دے. ښه به دا وی چې پوره پوره حال ورته اووائې.

دلدار کورته لاړو پلار ئې ناست وهٔ مور ئې ورته اووې چې زر راځه ستاسو دا چکرې مکرې نهٔ ختمېږی د راتلو وخت دے مونږ وختی راسې پهٔ دې طمع ناست یو چې تهٔ راشې او ډوډۍ سره یوځائے اوخورو.

**واکدار:** اوکۀ نۀ بچیه مور دې ښۀ وائی وختی راتلل ډېر ښۀ دی.

**دلدار:** دادا د شوکت سره وتلے ووم. دوئ ډودۍ ته کښېناستل واکدار د زوی نه تپوس اوکړو.

**واکدار:** دلداره بچیه! د شوکت نه دې پښتنه اوکړه خان صېب به په طمع وی.

**دلدار:** او دادا پښتنه مې اوکړه خو...

**واکدار:** خو څۀ مطلب پاکه خبره ولې نۀ کوې.

**دلدار:** نن یو عجیبه غوندې واقعه اوشوه.

**واکدار:** هغه څنګه پۀ کوم ځائے کښې او د چا سره.

**دلدار:** هغه دا چې زۀ او شوکت پۀ چکر اووتو. ما ورته ستاسو د خلې خبره اوکړه. چې خان بابا دادا ته داسې وئیلی دی چې تۀ شوکت ته د دلدار په خلې دا خبره اوکړه.

**واکدار:** نو هغه څۀ اووې؟

**دلدار:** تاسو خو ماته غوږ کېږدئ چې هغه څۀ اووې اول خو ئې پاك انکار اوکړو چې زۀ د پشمینې سره وادۀ نۀ کوم. دا نوے دور دے هر سړی ته دا حق حاصل دے چې په خپله مرضۍ وادۀ اوکړ. او بله دا چې زما لا د وادۀ کولو څۀ پروګرام نشته. خو خبر زۀ پۀ دې پوهه ووم چې اوله ورځ ده کېدے شی چې سبا یا بلې ورځې ته رضا شی. مونږ د سیند پـه غاړه ډېر وخت تېر کړو ماښام کېدونکے شو. او مونږ

واپس سړك ته را اوختلو ناڅاپی د بیزو یو کنډك مخې له راغے چې ورسره یوه ښځه او یوه پېغله لور هم وه. یره دادا خو ډېره د صفت لائقه جینۍ وه واقعی چې داسې ښائسته جینۍ به په ټوله دنیا کښې پېدا نۀ شی. شوکت چې د جینۍ خواته اورسېدو نو د رسېدو سره ئې پرې زړۀ بائیلو.

واکدار: نو ولې هغه جینۍ به د شوکت سره دلاسه وی څۀ؟

دلدار: بیا دې خبره پۀ مینځ کښې پرېکړه کنۀ. پوره کړې خو مې لا نۀ ده.

واکدار: ښه ده ښه وایه وایه نو څۀ اوشو.

دلدار: څۀ اوشو هغه اوشو چې څۀ د خدائے نه منظور وو. شوکت لکه د تږلی قېدی په ځائے اودرېدۀ او د جینۍ سره ئې خبرې اوکړې تعارف اوشو هغې خپل نوم او ځائے اوښودلو او شوکت ورسره د وادۀ لوظ اقرار اوکړو. چې زۀ به پۀ تاپسې سپین سر ته درشم. خو ضرور به ستا سره وادۀ کوم. دا زما ایمان او غېرت دے.

واکدرا: وئ بچیه دا خو ډېر بد اوشو هلك والے خو ئې اوکړو خو لږ سوچ به یې کړے وۀ جینۍ خو اسمان ته تله اوس به څۀ کېږی کۀ چرې پلار ئې خبره اونۀ منی نو بیا.

دلدار: خامخا به یې منی او کۀ نۀ ئې منی نو د هغۀ د ژوند دا فېصله ده چې دا کور به پرېږدی او شپونکے به شی خو د

هغهٔ ژوند د نن نه پس د اجړې سره د ے.

**واکدار:** بچیه کهٔ درنه کېد ے شی نو وړوکے خان پوهه کړه او ورته اووایه چې دا خبرې دې نهٔ کوی ګنې بیا به ډېر زیات ستومانه شی ځکه چې چې.

**دلدار:** چې چې د دې نه اخر څهٔ مطلب.

**واکدار:** تهٔ وړوکے یې نهٔ پوهېږې او نهٔ خبر ئې تاسو لاوارۀ وئ دلته یوه شپه یو شپونکے انګولی غوښتلو له راغلے وهٔ. په هغه شپه زما د پهرې نمبر وهٔ. دهٔ انګولے غوښتلو او ما ورسره تلخ کلامی اوکړه خدائے حاضر د ے چې شپونکے بې ګناه وهٔ خو چې کله هغه زما خبره او نهٔ منله نو ما شور جوړ کړو. چې دې شپونکی د خان د کور ستر مات کړے د ے او پهٔ دروازه کښې ئې دننه کتلی دی ما شپونکے دوه درې لتې اووهلو او د کلی خلق سره د خان راغلل. د خبرې هډو چا معلومات اونهٔ کړل. خو پهٔ شپونکی ئې یو درز جوړ کړو. او څهٔ وخت پس هغه غریب پهٔ وینو کښې لت پت د دې دنیا نه رخصت شو. بیا لږ وخت پس یو بل شپونکے د ډوډۍ غوښتلو د پاڼه راغے او مونږ په زور مړ شپونکےِ هغهٔ ته پهٔ شاکړو. هغهٔ مړ شپونکے د کلی پشا دې بڼ ته ویوړو. پهٔ سوری قبر کښې واچولو او خاوره یې پرې واړوله. هغه واقع مې تر اوسه د سترګو کېږی.

ستاسو عقلونه کچه دی هسې نهٔ چې دغه جینۍ د دې

کوړمې څوك وی او څۀ د يو داسې انتقام يا بدلې پۀ نيت راشی چې يوازې د مرګ د پاره نۀ بلکې د خان ټول کور بې عزتی او کړی په دې خبره ښۀ سوچ او کړئ.

**دلدار:** يره بابا خبره خو دې د علامې نه خالی نۀ ده ځکه چې يوه ښائسته جينۍ او د شوکت سره په اولنی ملاقات کېدو سره سره د وادۀ خبره کول. دا څنګه کېدے شی ځکه چې دا جينۍ خو به د چا لور هم وی کنۀ بغېر د پلار د رضا نه به څنګه د يو سړی سره وادۀ او کړی.

**واکدار:** نو په سوچ سره هغه پوهه کړه. دا زمونږ فرض دی ځکه چې مونږ د هغوئ نمکونه خوړلی دی. هسې نۀ چې زمونږ پۀ وجه ورته څۀ ډنډه اولړلے شی.

**دلدار:** ډنډه خو دادا هسې هم تا لړلې ده کۀ بله اولړلے شی نو څۀ به اوشی.

**واکدار:** هغه ډنډه خو لا نهلله شوې نۀ ده. او زۀ پرې اوس دومره ستومانه يم چې ډېر ځکه چې هيڅ بې هيڅه مې خپل مالك له دشمنی جوړه کړه. اګر چې شپونکے خلق هيڅ هم نۀ شی کولے. خو بيا هم بې بوده خلق دے. غوږ. ښکر نۀ لری کېدے شی چې يو داسې بدل واخلی چې بيا ئې بدله نۀ اخستے کېږی. هر څۀ چې وی خو تۀ شوکت پوره پوهه کړه. او هن کۀ چرې زما نه خان تپوس او کړی نو زۀ ورته څۀ وايم.

**دلدار** اوس خو د دې خبرې تاسو هغوی ته هيڅ ذکر

مـهٔ کـوئ. زهٔ پـهٔ شـوکت دا زور اچـوم چـې د هغـهٔ خيـال د شـپونکې د مينې نه پـهٔ ځنګ کـړم. کـهٔ اوشـوه نـو بيـا بـه د وخت سره ګورو. ښهٔ ده مورې زما بس راکړه زهٔ ورځم نن شپه د هغهٔ سره حجره کښې سبا کوم. هغه به زما انتظار کوی.

مور: هـن دا بـس دې واخلـه خـدائے دې پـه حيـا لـره بچيه! مونږ د خان ډېر نمکونه خوړلی دی. ډېر کوشش اوکړه چې شوکت د خپلې خبرې نه واپس شی. د ټول کور او د ټول کلی خبر دے پکښې بچيه. او د پشمنې بی بی خو به زړهٔ ټق اوچوی. ځکه چې هغـه پـه شـوکت ډېـره مئينـه ده. ډېـره ښـه ښځه ده. ځه بچيه پهٔ مخه دې ښه. خدائے دې د خېره تر سحره بېرته راوله. دلدار حجرې ته راغے شوکت پـهٔ کمره کښې پـهٔ ډېر سوچ او فکر کښې اخته دے کله کتاب راواخلی او کلـه اخبار ناساپی دلدار راننوتلو.

دلدار: السلام عليکم!

شوکت: واعليکم السلام. ډېر دې ناوخته کړو دلداره زهٔ دې د ډېر وخت راسې پـهٔ طمع وم. ډوډۍ مې هم لا نـهٔ ده خوړلې.

دلدار: خوړه به دې کنهٔ. ما خو درته وئيلی وو چې زهٔ به ډوډۍ کور خورم.

شوکت: مړه دلداره خالص د مرچکو پهٔ ځتهه نا ـت ئې خو بس ډوډۍ مهٔ خوره او هن هغه ماما څهٔ اووې. ډېر ابسـ ر

شوې ګورے د هغۀ سره دې خبره کوله کۀ.

دلدار شوکت ته د شپونکی د مرګ تولـه قـيـصـه تېره کړه. او ورته يې د خاندان د عزت او بې عزتـۍ پـه سـوال هـم غـور و حـوض تـه موقـع ورکـړه چـې شـوکت ښـۀ سـوچ اوکـړه خبره واقعی د خاندان د شان سره مناسب نۀ ده. يو خو بـه دې پلار هر ګز دې خبرې تـه نـۀ تيـار ېږی. کۀ چرې هغـه سـتا زړۀ اوساتی او دې ته تيار هم شی. نو د کلی محلت خلق به څۀ وائـی. کـۀ چـرې سـتـا د دې ښـځې نـه اولاد اوشـی نـو پـۀ معاشره کښې به د هغوئ څۀ حيثيت وی. پـۀ دې ټولـو خبرو فکر اوکړه نو بيا هلۀ دا فيصله کوه.

شوکت: دا فيـصله شـوې ده.مـا نـۀ بلکـې دا زمـا زړۀ کړې ده. دلداره دا تۀ چې کومې خبرې شـوچ کـوې. دا د هغـه چا د پاره دی لکه چې پۀ بازار سودا کوی. دکاندار ورته ډېر څيزونـه راواخلـی. او د هـر يـو قيمـت او ښـکلے والـے ورتـه وائی. اخستونکے د قيمت هم اندازه لګوی او د ښکلی والی هم او بيا پۀ خپله خوښه او د ملګری پۀ رضا يـو څيـز واخلـی لـيکن زۀ هغـه اخسـتونکے نـۀ يـم چـې د ډېرو څيزونـو سـودا کوی.ما خو يوه سودا کوله او هغه مې اوکـړه پـلار مـې راتـه دوادۀ وئيلی وو دا څۀ ضروری نۀ ده چې زۀ دې د پـشمينې سره وادۀ اوکړم. واقعی پشمينه ښه او نيکه ښـځه ده. زمـا د ترۀ لور ده خو اجره زما د زړۀ خوښه ده کېدے شی چې هغـه

زما د پلار نه بدل هم واخلی. زما د خاندان عزت هم لاړ شی
خو مينه هغه څيز دے دلداره چې دا نۀ بدلېدونکے شے دے.
ما مينه کله منله. ماوې دا خلق دروغ وائی مينه هسې نوم
دے. خو نن د اجړې د سترګو غشو داسې ويشتلے يم او د
زلفو دام ئې داسې تړلے يم چې هر څۀ رانه هېر دی. کۀ هر څو
راته څوک د خاندان د عزت، د پلار د شان و شوکت. ما د
حيثيت د پشميني د نېکوالی خبرې کوی خو لکه چې سندړا
ته سرود غږوی. قسم مې دې په هغه خدائے وی چې کل
جهان ئې پېدا کړے دے دلداره دا زما اخره فېصله ده ما د
اجړې سره وعده کړې ده او دا وعده به زۀ خامخا پوره کوم.

**دلدار:** تادی مۀ کوه اوس خو مونږ دوه په دوه يو تا
څۀ خبره د کلی د خلقو په مخکښې نۀ ده کړې چې ګنې کچه
به شې کۀ چرې واقعی د اجړې په زړۀ کښې هم داسې مينه
وی. نو هغه به سپين سر ته لاړه شی او بيا به راشی. د دې د
پاره چې تا اووينی. ستا تلو ته هيڅ ضرورت نشته هغه به
خود بخود د مينې داور د لمبو د لاسه لېونۍ ستا کلی ته
راشی.

**شوکت:** يوه جينۍ به څنګه دا اوکړی.

**دلدار:** بيا به هغه مينه نۀ وی. کنۀ د مينې د پاره د
هلک او د جينۍ ترمينځه څۀ فرق دے. بله دا چې کۀ چرې د
هغې ستا دولت، خانی او عزت ته غلا وی نو په کور به

ناسته ستا انتظار کوی. او کۀ چرې ستا سره مینه لری نو ضرور به راشی.

شوکت: دلداره زما ستا سره وړوکوالے وتلے دے زۀ دې ښۀ پېژنم. تۀ اوس دا چالاکی کوې؟ ستا دا خاص یقین دے چې یوه جینۍ په هلك پسې هیڅکله نۀ شی تلے نو اجړه به راشی او زۀ به لاړ نۀ شم. دغه شان به زۀ په خپله وعده کښې دروغژن شم. او هغه به زما محبت هېر کړی. خو دا زۀ هیڅ کله نۀ شم کولے تۀ ماله دهوکه نۀ شې راکولے. زۀ به ضرور ورځم اجړه به زما انتظار کوی.

دلدار: بس نور څۀ نشته خو اجړه، اجړه، اجړه یادوې. په یادولو هیڅ کار نۀ کېږی. دا څۀ معمولی واقعه نۀ ده چې تۀ به اوغواړې او هغه به اوشی.

شوکت: ولې داسې څوك دی چې زما او د هغې تر مینځه به دېوال شی هر هغه څوك چې زما د معصومې مینې دېوال جوړ شی نو زۀ به د هغۀ پۀ وینو خپله مینه رنګداره کړم.

دلدار: خبر دې وی خان ګله په جذباتو کښې مۀ راځه مینه دومره د تادۍ شے نۀ دے. او کۀ چرې ستا د مینې منږه دومره ګړندی وی نو خدائے خبر چې سپین سر ته اورسی. تحمل اوکړه، صبر اوکړه، لږ ساړۀ اوخوره. دې له به ماحول ټیك کول غواړی. خان بابا به دلاسه کول غواړی او

کـهٔ چـرې لا پکـښې دا خبـره ښـکاره شـي چـې اجـړه د مړشپونکي څه ده نو بيا.

**شوکت:** نـو بيـا زهٔ بـه د هغـوی مړشـپونکے پـه بيعـه واخلم د هغوی ننواتې به اوکړم. منت زاری به اوکړم او هغـه به مونږ اوبخښي.

**دلدار:** خو کهٔ چرې داسې اونهٔ شي نو بيا؟

**شوکت:** داسې به ضرور کيږی غريبانان خلق په دولت اخستل څه ګران کار نهٔ دے.

**دلدار:** دا خـو صـرف سـتا خيـال دے شـوکته چـې غريب خلق پهٔ دولت خرڅيږی او اخستے کيږی. ډېر غريبانان خلق داسې وی چې هغه خپل سرومال تاله کړی. خو د چا د خـانۍ او رعـب داب هـيڅ پـروا نـهٔ لـری. نـهٔ خرڅيـږی او نـهٔ اخستے کيږی. دا خيـال تـش دے. دا هـيڅ کلـه مهٔ زغلوه. پـهٔ دې تش خيال به ځان داسې کوهی تـه ارتـاؤ کـړې چـې سر بـه دې ورك شي.

**شوکت:** دلداره ما مينه کړې ده محبت مې کـړے دے څهٔ جرم مې نـهٔ دے کـړے. دا پاکـه مينـه ده پـاك محبت دے څهٔ غرض او لالچ پکښې نشته. کهٔ په دې کښې زهٔ هر کـوهی ته اولـيږم. نو تيار يم. تهٔ لا پوهه نهٔ شوې کهٔ زما د دولت سره مينه وے نو ما به د پشمينې سره وادهٔ کـړے وے. ځکـه چـې د هغـې خـوك دی. د خپـل پـلار يـك يـواځې لـور ده. د دولت

مشره ده. صحت منده ده، شریفه او خاندانی ده خو دا هر څۀ زۀ د اجړې په یوه معصومه غوندې ادا نۀ اخلم او هو ستا هېر شو دلداره څومره ښائسته وه. څومره کم عقله غوندې مینه ئې وه. هډو پۀ دهوکه شوکه پوهېده نۀ. خو بس ما خوښه کړه او زۀ ئې خوښ کړم سره د لیدو ئې ماسره د وادۀ اقرار اوکړو. پۀ سر ئې ښکلې رنګینه ټوکرۍ پکښې لوخې او دوه درې چرګـان د خندا شنه ساده جـامې، پښې ابله پښې. پرېکړې څونډی او غونډې غونډې څنې، ښکلې وړه خله نرۍ سرې شونډې، غونډه زنه او په قلم جوړه ځوانی سادګی، ناپوهی اثری خبرې، چپ شه دلداره، چې بیا د هغې د هېرېدو څۀ اونۀ وائې. کنۀ قسم به اوکړم چې تر عمره عمره بـه دربانـدې سترګې او نـۀ لګوم دا بـه تـۀ زما سره دوستی نۀ کوې دلداره خو ما سره به دشمنی کوې. دشمنی.

**دلداره:** زۀ پـۀ دې هـر څـۀ پوهـه یـم. خـو صـرف دا بـه اووایم چې تۀ د مینې په هغه خړ سېلاب لاهو شوې چې پۀ هغې کښې نۀ د سړی سترګې، نۀ غوږونـه او نۀ عقل کـار کوی. بلکې یو داسې وخت به راشی چې هر کله تۀ د سېلاب پۀ زور پوهه شې او د خلاصی کوشش شروع کړې نو لاس و پښې به ډېر وهې نو هیڅ فائده به نۀ کوی، ولې چې د یو سړی عقل فکر او هوش بې ځایه وی نو لاس پښې به ئې څۀ ملګرتیا اوکړی. دا هم کېدے شی چې د اجړې د مینې دا

رنګینه دهوکه ستا د پاره د یو عظیم انتقام سبب جوړ شی او چې کله یوه ښځه انتقام اخلی نو د دې د مقابلې هیڅ یو سړے طاقت نۀ لری ځکه چې دا یوه مشهوره خبره ده چې د ښځې د هرې یوې کمځی لاندې سل فریبونه وی.

شوکت: اهو پۀ غوږونو کنبې به ګوتې کېږدم دلداره دا دې څۀ غلطه خبره ذهن ته پربوتې ده. انتقام، انتقام، انتقام دا هسې وهم دے ګمان دے، اجره پۀ دې څۀ پوهه ده. او یا دا څۀ ضروری خبره ده چې مړ شپونکے د اجړې رشته دار دے او کۀ چرې دے هم. خو د هغې د پاکې مینې جذبه دا وایی چې هغه به زما هر جرم معاف کړی. هغه به ما د غرمې تاوجنو غرمو ته هم پرې نۀ ږدی.

دلدار: بیا دې د وړوکوالی خبره اوکړه شوکته. زۀ تا ډېر د وړوکوالی نه پېژنم چې تۀ ډېر جذباتی سړے ئې. اوس هم زما دا یقین دے چې دا مینه دومره ژوره نۀ ده لکه چې څومره پۀ نن شپه کنبې ستا په ذهن خوره شوې ده. ښۀ به دا وی چې ته ارام اوکړې او سحر بیا دا خبرې اوکړو. اوس اودۀ شه.

شوکت: بیا دې خپله خبره اوکړه دلداره ما درته یو وار وئیلی دې چې ما فېصله کړې ده او تۀ راعته وائې چې ارام اوکړه څنګه ارام اوکړم. ستړے زړۀ ناقراره جګر او خوږېدونکے سر به څنګه ارام اوکړی. او بیا ماله خو د

داسې تسلي ضرورت دے چې يقين امانی مې اوشی. او وايه دلداره ستا به زړۀ نۀ سوزی. تۀ زما څۀ مدد کولے شې. تۀ زما د ډېر وړوکوالی ملګرے ئې ماته د ورور نه خوږ ئې. تۀ دا غواړې چې زۀ دې لېونے شم. سودايی شم خلق دې پۀ ما پورې اوخاندی د کلی خلق دې پۀ ما پورې ملنډې کوی. زۀ د خپله کاره اوځم. تۀ اووايه دلداره دا هر څۀ تۀ برداشت کولے شې. اخرماله تۀ هم څۀ تسلی راکړه کنۀ.

د دې سره د شوکت د سترګو بې واره پې واره اوښکې روانې شوې. دلدار هم غريب او نيولو. راپاڅېدۀ او شوکت له ئې غاړه ورکړه پۀ مخ روانې اوښکې يې ورله وچې کړې او رو غوندې يې پۀ ژړغونی اواز اووې.

**دلدار:** شوکته زما دې پۀ هغه خدائے قسم وی چې ستا پلار يې خان او زۀ ئې غريب پېدا کړے يم. زۀ به ستا د سترې زړۀ سوی جګر او کړېدونکی صورت د پاره خپله ساه ورکړم خو تا په غم او کړېدو ته پرې نۀ ږدم. دا زما وعده ده شوکته! د يو ملګری د يو دوست او د يو نوکر لوظ دے شوکته. يو پوخ لوظ دے او د دې خبرې سره دواړه يو پل ته ورترغاړه وځی.

**شوکت:** دلداره روره په خدائے به شی او په تا به شی. بابا ځومره خبره د واکدار ماما منی. هر څۀ چې کېږی خو اجره دې دې کورته راشی. دا زما د ژوند اوله او اخره ارزو

ده او کۀ زما درخواست په دې کور کښې اونۀ منلے شو. نو زۀ به دومره بد حاله شوے یم چې ژوندے به پاتې نۀ شم. خو انجام په مې خودکشي وی.

دلدار: خلۀ بنده که شوکته خودکشی د بزدل سړی کار دے. تۀ زلمے سړے یې. یو تعلیم یافته هوښیار او زړور پښتون ئې. تاله د وختونو مقابله کول دی. چې تۀ د خاندان عزت زیانول غواړې نو د دنیا یو طاقت هم تا د اجړې نه نۀ شی منع کولے. خو په انجام سوچ اوکړه.

شوکت: څۀ انجام؟

دلدار: نور څۀ خو انتقام. عزت او

شوکت: اوهو انتقام، عزت دا دې څۀ لفظونه ګوته کړی دی. پۀ ما اوربلېږی زړۀ مې درزېږی وار مې خطا دے، د مینې مخکښې د عزت څۀ سوال دے. د مینې کوونکے لېونے دے او په لېونی پسې خلق څۀ څۀ نۀ وائی. تۀ په خپله پۀ کوڅو کښې ګرځېدونکی لېونی نۀ وینې؟ زۀ هم هغه لېونے یم. ماته د خاندان د عزت هیڅ ضرورت نشته. زۀ د شپونکیانو د انتقام نه نۀ ویرېږم. ما ته د پشمینې د دولت هیڅ ضرورت نشته. ما ته خپله مینه پکار ده دلداره خپله مینه.

دلدار: بس بس پۀ دې عمل دے. زۀ به سحر د دادا سره خبره اوکړم او تۀ به سحر په خپل وخت کالج ته لاړ شې

خو هلته به ځوړند سر نهٔ ګرځي چې ثوك پوهه نهٔ شي چې تهٔ ولې خفه ئې او پهٔ تا څهٔ تېرېږي؟ خپله نوكري ښه پهٔ ايمانداري کول پکار دي. دا هر څهٔ وخت غواړي. د تادي خبره نهٔ ده. ځکه خان بابا دلاسه کول هم څهٔ اسان کار نهٔ دے او کهٔ چرې تا د تادي نه کار واخستو نو دا کار به د جوړولو په ځائے ورانولو ته تېل وهي. زما خو دا خوښه ده چې ښه خاموشي اختيار کړه او د وخت انتظار كوه.

شوكت: وخت وخت بويه دلداره مياشتې كلونه هم وخت وي او ورځې. هفتې هم وخت وي. زهٔ خو د ګېنټو وخت ته هم نهٔ يم تيار. دلحظو سيلۍ مې په زړهٔ كښې الوزي.

دلدار: بيا د ماشوم والی هغه خبرې کوې اوس خو تهٔ د خېره سره زلمے يې. د سبق نه وتلے. نورو ته سبقونه وائې. نورو ته پهٔ صبر كولو د وينا حقدار جوړ شوے ئې. تهٔ په خپله صبر نهٔ كوې. نو نورو ته به څهٔ صبر اوښائې. خو خېر اوس پهٔ دې شپه كښې هر څهٔ نهٔ كېږي. كنهٔ. تهٔ سحر كالج ته ورشه او زهٔ به د دادا سره خبره اوكړم. تهٔ هيڅ غم مهٔ كوه.

شوكت: بس ستا په دې هر څهٔ عمل دے. واكدار ماما ښهٔ پوره پهٔ واقعاتو پوهه كړه. خو دا ورته اووايه چې كهٔ چرې بابا انكار اوكړو نو زهٔ به د دې كلي نه اووځم او دوباره به رانهٔ شم. بيا زما دلته استوګنه ګرانه ده او دا كور

به همېشه همېشه زما نه پاتې وی.

**دلدار:** بس که نور مې غوږونه مهٔ خوره. زنها مړه کړه چې اودهٔ شو. دا زیرو بلب هم مړ کړه. او اے هلکه دې ریډیو راته څهٔ کړنګ کړونګ شروع کړی دی دا هم بند کړه کنهٔ.

شوکت ریډیو بند کړو بلبونه ئې اف کړل او بیو سوړ اسویلے یې اوکړو بړستن یې د پښو د طرفه سرته راښکودله او پښې ئې اوغزولې. ځان یې خاموش کړو. خو ورته خوب کله راتلو. ډډې په ډډې کېدهٔ او ځملا ستلو.

## [illegible]

ملا بانګ اووې خو شوکت، ټوله شپه روڼ کړه کله ژړلي کله په خپله وعده ستومانه شي. هسې نۀ چې پلار مې دې خبرې ته تيار نۀ شي. نو زۀ به د اجړې د حسن په مخکښې شرمنده شم خو بيا ئې زړۀ له تسلي ورکړه. چې مړګ خورانه چا وړے نۀ دے. خودکشي به اوکړم. نرۍ نرۍ رڼا اولګېده. راپاسېدۀ او دس او مونځ يې اوکړو. او د کالج د پاره يې د تلو اندازه جوړه کړه. ځان ئې ښۀ سنهبال کړو. کپړې ئې بدلې کړې دلدار يې وېښ کړو او د رخصت پۀ وخت ئې ورته اووې.

شوکت: دلداره زۀ به لاړ شم کالج ته او تۀ کورته لاړ شه. بس دې يوسه خو چې زۀ راځم چې تا خبره خلاصه کړې وي ګورے.

دلدار: زما په خيال خو صبر پکار دے. اجړه به هسې هم نن سپين سر ته اورسېږي. او نۀ وادۀ پۀ لاره کېږي چې هغه تر څو مقيم شوې نۀ وي نو خبره څنګه کېدے شي.

تهٔ ولې دومره تاوده خورې.

**شوکت:** دا زهٔ تاوده نهٔ خورم د خپل زړهٔ فېصله کوم او هغه فېصله پهٔ کومې چې ما عمل کړے. تهٔ دا غواړې چې ما د یوې شپونکۍ جینۍ په مخکښې کچه او شرمنده کړې. ما پهٔ خپله وعده کښې بدښکاره کړې. پته اولګېده چې تهٔ ما شرمنده کوې.

**دلدار:** بس مې پهٔ اوره دے لاړم. کوشش به کوم خو کهٔ چرې موقع مې بیا نهٔ مونده نو تادی به نهٔ کوې.

**شوکت:** دا زهٔ هله منم نهٔ چې زهٔ دې راشم او خبره تا نهٔ وی خلاصه کړې.

**دلدار:** د تادۍ انجام خراب وی ګورے.

**شوکت:** تهٔ د انجام خبرې پرېږده. ما فېصله کړې ده. کهٔ زما پهٔ حق کښې وه نو ښه! او کهٔ نهٔ وه نو زهٔ به واپس کلی ته نهٔ راځم او کهٔ چرې راځم نو جنازه به مې راوړئ.

**دلدار:** ښه ده چې ستا دا فېصله ده نو زهٔ به ضرور خبره اوکړم. شوکت د حجرې نه کورته راغے. د نغری پهٔ غاړه د ناشتې کولو د پاره کښېناستلو. پشمینه لګیا ده. ناشته یې تیاروله. د شوکت سترګې کوزې غوندې وې. مور یې راغله.

**مور:** پشمینې شوکت چائے اوڅښکو کنهٔ؟

**پشمینه:** ایښودے خو مې ورته دے. خو هله ګوری

ورته نهٔ.

مور: ولې شوکته بچیه! ستا د سترګو نه زار شم. ناشته! اوکړه. ناوخته دے. کالج ته به ځې بیا به ګورے څه وخت راځې.

شوکت: زړهٔ مې نهٔ غواړی چې نن ناشته اوکړم. او د دې خبرې سره پاسېدهٔ او وږے تږے کالج ته روان شو. مور حېرانه غوندې شوه او د پشمینې نه ئې پښتنه اوکړه.

مور: څهٔ چل دے بچۍ شوکت خو نن داسې لکه چې ټوله شپه ئې روڼ کړې وی او ژړغونے غوندې وهٔ. خدائے دې خبر کړی چې ناجوړه وهٔ کهٔ.

پشمینه: ما ته څه پته نشته ابۍ زما د هغهٔ سره د داسې خبرو د تپوسلو څهٔ حق دے. ماله خو ناشته تیاروله وو. نو ما تیاره کړه اوس خوراك او نهٔ خوراك د هغهٔ کار دے مالدار دے ځوان دے تعلیم یافته دے د خپلې مرضۍ خاوند دے چې څهٔ ئې زړهٔ غواړی هغه به کوی. یا ئې مونږ مظلومان مجبوره اوبې ځوکه خلق خوښ نهٔ یو. مونږ کهٔ په خپله خوشحاله یو او کهٔ نهٔ. خو د بل د خوشحالۍ او خفګان خیال به ساتو. د بل د زړهٔ خیال به ساتو. دا هم لا ژوند دے چې سړے خپله سترګې پهٔ بل سوره کړی.

مور: غلې شه جینۍ خفه کېږه مهٔ. ما دا تاته نهٔ دی وئیلی.

پشمینه: نور به دې څهٔ وې خو مطلب دې هم دا وو کنهٔ

چې جوړې زما نه خفه شوے دے.

مور: داسې متاکې متاکې دې راسره اووې چې ناشنا تا خو چرته داسې خبرې نۀ وې کړې. خدائے خبر چې نن درباندې څۀ چل اوشو. کۀ چرې ژبه دې داسې لکه د قینچۍ او چلوله نو شوکت څۀ چې ټول ټول کور به خفه کړې.

پشمینه: ټول کور دې خفه شی خو زۀ نور دا ناکام نۀ شم کولے. زما په دې کور کښې دی څوك. چې نۀ د چا مور وی. نۀ پلار وی نۀ ورور وی او نۀ خور خو لکه د صحرائی مرغۍ په پنجره کښې بنده یم او هر اندام مې سترے دے. ما خو خپل هر څۀ ستا سو د پاره بخښلی دی! نور څۀ اوکړم. زۀ د دې نه زیات څۀ کولے شم او دا هر څۀ چې کوم دا زما یوه مجبوری ده ځکه.

مور: بس که پشمینې نن دې داسې هنړ زوړ شروع کړے دے چې هډو غلې کېږی نۀ. ټول کور دې په سر راخستلے دے. ستا مور زما خور وه او پلار دې د شوکت د پلار ورور وۀ. پاتې دا چې ستا پلار او مور مړۀ شو نو په دې کښې زمونږه څۀ ګناه ده. مونږ خو نۀ دی وژلی کنۀ. تاله ورور او خور خدائے نۀ دی در کړی زمونږ نه څۀ ګیلې مانې کوې. او ترۀ دې دا ډېر بد اوکړل چې ښۀ تعلیم یافته هلك له ئې اوغوښتلې ولې دا څۀ لږ احسان دے.

پشمینه: نانا! د غوښتلو احسان په ما هیڅ احسان نۀ

دے تاسو به خپل زوی له یوه ښځه کوله او زهٔ درته د بلې نه ارزانه او په قیمت ښه پرېوتم. هر سړے خپل مطلب لټوی. کنهٔ نن خو د شوکت سترګې ماته داسې ښکته وې چې بالکل لیدے ئې نهٔ شوم. ما څهٔ ګناه کړې ده. کهٔ زما په کوژدن کېدو ورته اعتراض وی نو زهٔ به خپل سر هسې سپین کړم خو د هغهٔ په ژوند کښې به خلل هیڅرې وانهٔ چوم.

مور: ښه وے بچیه ستا خبره درسته ده ښځوالے د خوښې شے دے. زهٔ به دې ترهٔ ته اوو ایم چې دا نهٔ ده خوشحاله هغه به خپل زوی له چرته بل ځائے اوګوری.

پشمینه: نن راپورې داسې مچیه شوې ئې لکه د ښې یا د دشمنې. اوچ په اوچه راپورې دا خبرې جوړوې ما څهٔ وئیلی دی. کلثوم د کمرې نه را اووتله چې وې لیدل نو مور ئې قاربږی او پشمینه ئې راایساره کړې ده.

کلثوم: ابیه دا څهٔ کوې پشمینه دې ولې ایساره کړې ده. په دې چې د ټول کور مزدوری درلـه کوی. د پلار په دولت ئې مزې کوئ. بې اسرې او بې ثوکه درته ښکاره شوې ده. زما د ډېرو ورځو راسې خیال دے چې دې ورته سترګې ښکته دی او د لالا ورته هم نظر ښهٔ نهٔ دے. دا خو شکر دے چې بابا ژوندے دے کهٔ هغه نهٔ وے نو دا خو به تاسو اومه خوړلې وه.

مور: ته لا څوك ئې چې د هغه خایه راغلې او داسې دې زما په خبره کښې وار واخستلو. غلې کښېنه ښېنې وهلو ته دې زړۀ اوشو. ته راپسې اوس ښېنې وهلو له راغلې. دې یوې مې لږ په سر دړد کړو. ببګاه مې ټوله شپه روڼ کړې ده دانې مې پاکې کړې دی. چا راسره لاس هم نۀ دے وروړے قوسر شوم دانیال یوه دانه وړۀ کول خو په تاسو بلا لګی الا ډېرو تاسو به زما په څۀ کار راځئ. د شین چی (چائے) د یوې پیالې ځائے زما په تاسو کښې نۀ وۀ. چې ګوره ابۍ ستړې شوې ده چې یوه پیاله چائے خو ورله پوخ کړو کنۀ.

کلثوم: دا دې هم هسې اووې ابۍ پشمینې دانیال اوړۀ کړی وو او شین چائے ئې پوخ کړے وۀ. خو چې تا ته یې غږ اوکړو نو ستا سترګې ورغلې وې او اوده شوې وې. دا خو زما د مخې قصه ده.

مور: دا تـا ولـې داسـې متـې وهلـی دی د پـشمینې پـه ملګرتیا راغلې.

کلثوم: پشمینه د چا غلامه نۀ ده ابۍ نۀ د چا وینځه ده چې په بیعه ئې اخستلې ده. د خپـل جائیداد او نیم کور حقداره ده. د خاوند والی په دې څۀ لحاظ کوئ چې دا اوغواړی ورته به څلور شپږ خاوندان په لاس ورشی.

مور: ژبه دې چاړې شه کلثوم هله سترې کبرې نۀ زما خو دې په سر درد کړو ګونګی شې. هسې مې ټوله شپه روڼ

کړې ده. هلك مې هم اوږې ترې کالج ته لاړو. څه پشمینې اوکړسولم او څه تا په سر راخستلې یم. ورکې شئ غلې شئ کۀ غږ یو وکړو نو... تاسو ورکې شئ او کار مو ورك شه. دا تر اوسه کارونه تاسو کول. په پښو شلې شئ. ټوله ورځ به زۀ کار کوم.

پشمینه او کلثوم په خندا غوندې کمرې ته لاړې او مور یې مصری جان ته اواز اوکړو چې مصری جان اے مصری جان دا تۀ څۀ په تورو اووهلے شوې. د دې دوو نامو لږه وکړسولم. چې ته هم رانه لرې شوې. راشه دا ټماټر وارۀ کړه پیاز اوټکوه، مرچکے ورۀ کړه، اوړۀ واغږه، لوښې اووینځه تنور اولګوه او اوبۀ راوړه چې کار شروع کړو.

مصری جان: دا خو بی بی ویړیا کار شو تۀ به پکښې څۀ اوکړې نور څوك د کار نشته زۀ اوړۀ اغږم ناوخته کېږی تۀ ټماټر او پیاز ځان له وارۀ کوه. خا بی بی.

بی بی: چاړې شې متیزې تۀ هم راته په متاکو متاکو خبرو را اونختلې. دا لس ګزه ژبه دې پرېکړې شه. په خرۀ سوره شې په شرمونو اوشرمېږې. اوړۀ اغږل څۀ دومره ګران کار دے. زۀ به ئې واغږم. خو چې اول دا ټماټر وارۀ کړمه راشه کښېنه په خرۀ سورې دا چاړۀ خو راله اوګوره کنۀ. زۀ خو د کاره ناشنا شوې چې اوس راته د چاړې، ټماټرو د مالګې د لوښی او هیڅ پته نۀ لګی.چې چرته پراتۀ دی. دا

جينکۍ دې خدائے ميراتې کړی. داسې کټ ئې راپسې اوکړو لکه د بنو. لکه چې زما بنې وی. لاړې اندرې په کمره کنبې دننه شوې. خاورې به اوخوری کۀ دوئ ما په خوراك پسې رندې نۀ کړې نو.

مصری جان: بی بی غلې شه خان بابا راغے کۀ څۀ.

بی بی: خدائے دې خبر کړی دا څۀ اوشو دا سړے خو چرته نور کله په دې وخت کورته نۀ دے راغلے چې څۀ اوشو.

هيبت خان د راتلو سره په زوره اواز اوکړو. د شوکت مورې يۀ د شوکت مورې د دې خطرناك اواز سره د شوکت مور مصری جان، پشمينه او کلثوم په شريکه راغونډې شوې. ټولو اووې څۀ چل دے څۀ اوشو.

کلثوم: خير دے بابا. خير خو دے کنۀ...

خدائے دې خير کړی.

پشمينه: خدائے دې خير کړی بابا تۀ خو څۀ وارخطا غوندې ئې.

ښځه: يۀ خانه څۀ چل دے ستا خو رنګ داسې بدل دے چې.....؟

هيبت: سرخوړند کړو ونۀ ئې اونيوله او يوه جهټکه يې ورله ورکړه. ما تاسو ته دا وئيلی وو چې د نوی دور اولاد د چا په کار نۀ راځی. خوشے اولاد دے. د داسې زوی

نه خو سړے میرات نۀ دے. کلثوم میرات مور دې پوښته کړه کۀ دا به د دې اتفاق او خونه وی. دا به ضرور دې لمسولے وی. کنۀ د شوکت څۀ ایمان او غیرت دے چې هغه ماته دا سې جواب اوکړی. او کۀ چرې بیا ئې داسې خبرې اوکړې او قلار نۀ شو. نو مور دې خبر کړه چې د دې کور نه به ځی. دلته یې د اوسېدو ځائے نشته.

پشمینه: ولې به اوځی خدائے دې نۀ کړی د یو په ګناه څوک بل ګنهګار وی څۀ چل دے. شوکت څۀ وئیلی دی؟

کلثوم: خبر دې وی لالاجی له څۀ چل اوشو. اخر څۀ چل اوشو؟

هیبت خان: لالاجی له دې هیڅ چل نۀ دے شوے لېونے شوے دے د خاندان په بې عزتۍ پورې انخښتلے دے. خبر شوې یئ. ما پرون واکدار ته وئیلی وو چې خپل زوی دلدار ته اووایه چې کۀ د شوکت خوښه وی چې د وادۀ بندوبست ورله جوړ کړو. واپس جواب ئې د دلدار په خلې رالېږلے دے. چې پۀ یوه شپونکۍ جینۍ مئین یم. کۀ چرې وادۀ راله کوی نو هم دغه جینۍ دې راله وادۀ کړی. کنۀ یا به کور ته نۀ راځم او یا به ځان مړ کړم.

د دې خبرې د اورېدو سره د کلثوم او پشمینې د سترګو نه بې واره اوښکې روانې شوې. د کلثوم مور خو هټکو اوښیوله او دائې اووې.

مور: ما درته نۀ وې پشمينې چې د شوکت سترګې نن څۀ بدلې غوندې دی. قسم مې دې وی خانه چې زۀ بالکل بې ګناه يم. سحر مې هډو لېدلے نۀ دے ما لا د پشمينې سره شر اوکړو چې ګورے ستا نه خفه شوے دے کۀ. او د دې سره کلثوم هم ملګرې شوه.

هيبت خان: هر څۀ چې دی وی به خو دا ورته زۀ اخره وينا کوم چې څۀ د هغۀ خوښه وی هم دغه دې وکړی يا دې مړ شی. او يا دې دې کورته نۀ راځی. خو زۀ به شپونکی هيچرې دې کور ته رانۀ ولم.

پشمينې! کۀ چرې واقعی پښتون وی نو په خپله وعده به ټينګ وی. ماته د داسې زوی هيڅ ضرورت نشته دا چرې هم نۀ شی کېدے چې غوښتلې ښځه به پرېږدی او د يوې شپونکی سره به وادۀ اوکړی. زۀ د داسې نه ميرات ښۀ يم. ميرات.

پشمينه: خدائے دې نۀ کړی بابا تا دې خدائے ميرات نۀ کړی. د ميرات څومره ناکاره غږ دے. دا واقعه هغه چا ته معلومه ده چې پۀ چا راغلې وی. شکر دے ماته د پلار پۀ ځائے ترۀ د مور پۀ ځائے ترور او د خور په ځائے کلثوم تر لاسه شوی دی. او دا خو لا بيا هم ستاسو په ما احسان دے چې زۀ يو خپل زوی له اوغوښتلم. ګنې د پښتنو په رواج کښې زما غوندې بې څوکه جينۍ سپيره ګڼلے شی. دا به زما

خپل قسمت خراب وی. کنۀ زما به خپل ورور، خور، مور و پلار ولې نۀ وو. زۀ خپل خراب قسمت ولې د هغۀ د ښکلی قسمت سره اوترم. هغه هلك د ے د خان زوے د ے خود مختاره د ے. د هغۀ لاس ازاد دی چې ۮ هر چا سره وادۀ کول غواړی نو اودې کړی. تاسو زما تېزندی خپلې مرې ته مۀ اچوئ. ماته خپل قسمت معلوم د ے. زۀ پۀ خپله بدبختنې کښې د هغۀ خوشقسمتی نۀ لرم. په ما غوندې بې ځوکه جينی باندې ستاسو ډېر احسانونه دی. زۀ هغه نۀ شم هېرولے. ډېرې جينکی داسې وی چې وادۀ شی او خاوند ئې مړ شی. زۀ هم يو داسې جينی يم چې مور، پلار، خور، ورو نۀ لری نو خاوند به څۀ اولری. زما شوکت ما د پاره مړ شو. اوس د يوې شپونکی جينی د پاره شوکت ژوند ے د ے او ژوند ے به وی. زۀ د کلثوم ورور د هغې نه جدا کول نۀ غواړم. زۀ هيچرې ستاسو يو زوے ستاسو نه جداً کول نۀ غواړم. او کۀ زۀ ستاسو پۀ سترګو بده لګېدم. نو زۀ به يو داسې ځائے ته لاړه شم چې هلته به ما هيڅوك نۀ وينی. خو د شوکت د خوشحالی د پاره غم نۀ جوړېږم. د دې سره سره پشمينې رامنډې کړې او د خپل ترۀ پۀ پښو پرېوتله. بابا دا درته زۀ خواست کوم چې شوکت د چا سره وادۀ کول غواړی. هم هلته دې اوکړی. د هغۀ مرضی زما مرضی ده. د هغۀ خوشحالی زما د کلثوم او ستا خوشحالی نۀ ده بابا؟ زما

غونډي.د يوې جينۍ د پاره د ټول خاندان خوشحالي خرابول جرم دے. او زۀ دا جرم په خپله ذمه نۀ اخلم. زۀ به لکه د مزدورې د هغې شپونکۍ پېغلې مزدوري کوم. خدمت به کوم ځکه چې دا د شوکت محبت دے. او اخلاق وئيلے شي هم دې ته چې هغه زۀ په جدايۍ کښې خوشحاله اوساتم. دا به واقعي زما غلطي وي کۀ چرې زۀ ناکاره نۀ وے نو هغۀ به ولې زما نه نفرت کولو. څوك چې ځان ازمائيل غواړي. ازمائيل ئې پکار دي. تاسو ترې اوس شور مۀ جوړوئ. دا هم د خاندان بې عزتي ده. شوکت نوے نوے پۀ نوکرۍ لګېدلے دے. دا مرضي هم د هغه اوکړئ هسې نۀ چې هغه دا بدنامه په ما راواړوي. او دا درته وايم چې کۀ چرې زما په وجه د شوکت په خوشحالۍ کښې څۀ قسم خلل راغلو نو زۀ به خِود کشي اوکړم او ځان به مړ کړم.

هيبت خان: دا تۀ څه وائې پشمينې! دا تۀ څۀ وائې. څۀ لېونۍ خو نۀ ئې کنۀ. يوه پېغله جينۍ دا څنګه برداشت کولے شي. دا خو هډو زۀ منم نۀ.

پشمينه: بابا څۀ چې مې وئيلي دي هم دا کافي دي تۀ به دا جينۍ اوګورې چې دا پښتنه جينۍ وه کنۀ. او د يو برائې نام خاوند د پاره ئې څۀ اوکړل. زما مثال خو د قربانۍ د ښاروي دے چې په تول پوره وي نو هلۀ پرې قرباني کېږي. ستاسو د خوشحالۍ د پاره به دا اخري قرباني هم اوکړم. سر

به مې هم داسې سپين شی خو شپونکی پېغلې ته به دا اظهار اونۀ کړم چې په شوکت زما هم څۀ حق دے. باباتۀ هيڅ فکر مۀ کوه. د پشمينې د دې اوږد تقرير سره سره د هيبت خان کلثوم او د مور د سترګو نه اوښکو باران روان دے او مصری جان ترور خان له په چغو چغو ژاړی.
پشمينې بيا اووې. بابا دا زما اخری فيصله ده ما ستاسو نه په ژوند کښې سوال نۀ وۀ کړے او اوس مې درته دا سوال دے چې شوکت خفه نۀ کړې. د شوکت کوېژدن دې مبارك شه. ضرور به ورله وادۀ کوې. دا صرف زما د پاره.

هيبت خان: په ژړغونی اواز اووې. پشمينې تۀ خو فرشته يې. زۀ به ستا دا احسان تر عمره هېر نۀ کړم. زما غصه دې هېره کړه. ګنی ما خو وې چې مور به ئې په لتو واغږم او شوکت به په ټوپك غار غار کړم.

افرين لورې افرين شه په تا غوندې پېغلو چې خپلې ټولې خوشحالی قربان کړی. خو د پلار او زوی تر مينځه رشته روغه اوساتی. د شوکت مور او کلثوم به ستا د دې احسانونو بدله هيڅکله خلاصه نۀ کړے شی.

پشمينه: بابا دا د احسان څۀ خبره نۀ ده دا زۀ خپل فرض ګنم او ما خپل فرض پوره کړل.

کلثوم: خورې فرض پوره کول هم يو لويه قربانی او احسان دے. واقعی د بابا خبره مونږ تاته همېشه سرټيټی

شو.

**پشمینه:** دا زۀ تولو ته وایم کلثوم چې تۀ ماته د خپلې خور نه کمه نۀ ښکاربږې. ځکه چې ما خپله خور لېدلې نۀ ده او د خوروالی مینه هم تا راکړې ده. زما دا اخره قرباني دې خدائے ستاسو د خوشحالی سبب جوړ کړی. دا به زۀ خپله خوشحالی گنړم ځکه چې د شوکت خان خوشحالی زما خپله خوشحالی ده. هیبت خان د کور نه خفه را اووتلو. چې حجرې ته راغے. واکدار ناست وۀ هیبت خان ورته اووې چې واکداره گرانه خبره اسانه شوه.

**واکدار:** هغه څنگه خان صېب؟

**هیبت خان:** چې په یو کور کښې د پشمینې غوندې لونړه موجودې وی نو هغه کور هیڅکله نۀ شی شرمنده کېدے. خدائے دې د هغې حیا اوکړی په پښنو مې پربوتله او د شوکت د رضا د پاره یې دا منت اوکړو.

**واکدار:** خان صېب ولې پشمینه بی بی به څۀ کوی؟

**هیبت خان:** مسئله هم دا وه. خو وایم چې شوکت به یود رضا زمونږ کوی او یوه به خپله.

**واکدار:** هغه څنگه؟

**هیبت خان:** هغه داسې چې خپله غوښتلې ښځه پشمینه به هم وادۀ کوی. اگر چې زما دا خوښه نۀ ده چې د یو سړی دې دوه ښځې وی او بیا په داسې دور کښې چې شوکت په

کالج کښې ملازم دے د هغهٔ سره خو بالکل دوه ښځې ښې نهٔ لګی. لیکن د پښتنو د رواج مطابق غوښتلې ښځه څوك پرېښودلے نهٔ شی.

**واکدار:** او نو دا خو به خامخا کوی.

**هیبت خان:** واکداره!

**واکدار:** جی جی

**هیبت خان:** تهٔ ورته د دلدار په خلې زما د طرفه دا اُووایه چې دوه ودونه به کوی هسې نهٔ چې شپونکې تر ګوتو کړی او زما ورېره هېره کړی. دا زهٔ خپلې مرې ته تېزندی اچوم ګڼې د خاندان د حیثیت سره دا ښهٔ نهٔ ښکاری چې د یو خان زوے دې شپونکې سره وادهٔ اوکړی.

**واکدار:** ډېره ښه ده جی. زهٔ لاړم دلدار به پوهه کړم هغه ډېر هوښیار هلك دے. شوکت به ښهٔ پوهه کړی او شوکت به ولې داسې ناجائزه کوی چې غوښتلې ښځه به نهٔ ودوی او بل وادهٔ به کوی. ضرور به د پشمینې سره وادهٔ کوی په هغې کښې څهٔ بد دی جی اوس زهٔ لاړم خانه. السلام علیکم

**هیبت خان:** وعلیکم السلام په مخه دې ښه زهٔ به د جواب په انتظار یم.

**واکدار:** ډېره ښه ده صیب ډېره ښه ده.

# فرزانه

شوکت اوړی تږی د کالج لور ته مخه اونیوله. کالج لرې لرې وۀ. په بس کښې به تلو راتلو. د بس نه کوز شو. کالج ته روان شولو. د کالج په یو ښکلی ګلدار چمن کښې اودرېدۀ. د کالج یو بوډا نوکر چې خلقو به ورته چاچا وئیل. شوکت هغه ته اواز اوکړو.

چاچا یۀ چاچا. یوه کرسۍ راوړه چې دلته کښېنم.

چاچا: ښه صېب دا دے راغلم.

چاچا کرسۍ راوړه شوکت کښېناستو

شوکت: چاچا! پرنسپل صېب خو به لا نۀ وی راغلے کنۀ؟

چاچا: نه جی! حلیم صېب راغلے دے او نور څوك لا نۀ دی راغلی.

شوکت: لیټربکس خو به دې نۀ وی کتلے چې زما څه خط په کښې وو کنۀ.

چاچا: نۀ جی کتلے مې لا نۀ دے خو اوس به ئې اوګورم.

چاچا لیټربکس اوکتلو چې یو خط پکښې د شوکت په نوم

پروت وۀ چاچا راغے او روغو غونډې ئې اووې. هن صبب دا ستا سو خط دے.

شوکت                    پۀ ډېر سوچ او فکر سره اووې هن زما دا خط ګورے چا رالېږلے دے. په تادی تادی ئې خط د لفافې نه را واخستو. او خط او خط لوستل ئې شروع کړو. اخر سر ته ئې اوکتل چې د چا دے په اخر کښې ئې لیکلی وو چې ستا په انتظار اوسېدونکې او ستا خوښوونکې فرزانه.

د شوکت سر اوچت شو او اسمان ته یې اوکتل. پښې ئې اوغزولې. خط ئې بند کړو او یو سوړ اسویلے ئې اوکړو. خدایه! پۀ څومره لوئې امتحان کښې دې اچولے یم. یو خوا فرزانه په ما مئینه ده خپل زړۀ ئې راکړے دے. بل خوا ته پشمینه مې د ترۀ لور کوژدن شوې. ښځه او زما په خوښوونکو کښې ده. بل خوا دې زۀ په داسې چا مئین کړم چې نۀ ئې د پښتنو رواج خوښه وی. نۀ مور، پلار نۀ یاران دوستان او نۀ کلثوم سره د پشمینې اخر ما څۀ جرم کړے دے.

خدایه! ولې دومره سزا راکوې. او کۀ چرې ما څۀ جرم کړے هم وی نو زۀ معافی غواړم خدایه او کۀ چرې سزا راکوې هم نو صرف ماله ئې راکړه هسې نۀ چې دا سزا زما په مور، پلار یا خور او پشمینې باندې اثر اندازی اوکړی.
خط ئې د پتلون په جېب کښې کېښودو. لاس ئې اوږېږدۀ

رنګ ئې زېړ شو. سر ئې ښکته کړو چې فرزانې به څۀ لیکلی وی. ډېر وخت روستو يې په خپله حوصله قابو بیاموندۀ او د پتلون نه ئې خط راواخستو چې اوګوری چې څۀ يې پکښې لیکلی دی. لاس ئې اورپېدل د لفافې نه يې کاغذ را اوښکلو. په غټو غټو سترګو ئې ورته اوکتل. او په ګرومېدو غوندې شو هغې لیکلی وو چې.

د اسمان خلقو بختور يئ چې يو زړونه نشته
بس عبادت دے او سجده ده نور غمونه نشته
تعمیل د حکم ته سرټيټی يئ ولاړ په هر دم
شئ مبارك چې مو په زړونو کښې عشقونه نشته

ډېره ګرانه او د يادولو قابله شوکته همېشه خوشحاله او اباد اوسې.

السلام علیکم!

زړۀ خو مې غوا‌ړی چې پاس لیکلے شعر د کاغذ نه اونړوم. او داسې يې وران کړم چې هډو نخښه ئې پاتې نۀ شی. خو بیا مې خیال راغے چې څه دا هم د چا د زړۀ اواز دے. يو مظلوم به وئیلے وی او زۀ ولې د دغې مظلوم اواز تاته در اونۀ رسوم اراده مې دا وه چې ډېر اوږد خط درته اولیکم چې پکښې به څۀ د ژوند حالات او څۀ د چا د ظلم و ستم داستان وی.

کله چې د ايم اے ريزلټ اناؤنس شو. او تۀ پاس

شوې نو زۀ صرف دومره خبر شوې ووم. چې تۀ وزیرستان تـه پۀ تېوور لاړې. او زۀ دلته د زنانوؤ پـه کـالج کښې پـه پوسټ اولګېدم. د یونیورسټۍ هله ګوله هلکوالے جینۍ والے خو لاړ تېر شو. اوس یو ذمه دار ژوند دے. خدائے دې کړی چې په تا په ارام تېرېږی. زما خو دا خیال وۀ چې دے به ضرور د تعلقاتو خیال اوساتی. او پښتنه به مې اوکړی خو تـا ځان ناغرضــه کــړو ښــۀ دې اوکــړل. ځکــه چــې دا بــه تاتــه ښــۀ ښکارېدل او کوم کار چې انسان تـه ښۀ ښکارېږی هغـه کـول پکار وی او بیا ستا غوندې ښائسته قابل او خود اعتماده هلك له خو ضرور داسې کول پکار وی.

هغه بله ورځ د چا د خلې نه خبر شوم چې د دۀ بدلی د خپلې علاقې یو کـالج تـه شوې ده. ځومره بختـور یـې خپلـه علاقه دې ځومره ښکلې ده او پـه ښکلې علاقه کښې ځومره ښکلی خلق اوسی. دوه کاله مخکښې مونږ یو ځل پۀ تېوور درغلی وو. ستا د علاقې حسن، رنګینی او د خلقو شـرافت مې ترمخه مخه کېږی. او ولې بـه نۀ کېږی چې پکښې ستا غونـدې وفـادار دوست اوسـی. ځکـه خو مـې درتـه د خـط لیکلو اراده اوکړه. د خط دا مطلب نۀ دے چې زما څۀ غرض دے. صرف د یادهانۍ پـه وجـه ئې درلېږم. ستا خو یادول زمـا حـق دے. زمـا او سـتا تـر مینځـه دلتـه ځـومره خـوارۀ تعلقـــات وتلـــی دی. دا د نـــۀ هېرولـــو قابـــل دی او نـــۀ

هېرېدونكى تعلقات دى. خو زۀ حېرانه يم چې تا ولې زۀ هېره كړم خبر كېدے شى چې ستا په ژوند كښې څۀ داسې بدلى راغلې وى. چې هغه زما د هېرېدو جوګه وى. او ضرور به راغلى وى ځكه چې دلته تا ذكر كړے وۀ چې زما د ترۀ لور زما پلار زما د پاره منتخب كړې ده. خو لا ما ورته نۀ نۀ دى كړى. كېدے شى چې اوس تاسو دواړه راضى شوى يئ او وادۀ مو شوے وى.

بس نو زما دا دعا ده چې خدائے دې ستاسو وادۀ كامياب كړى. وادۀ دې د ترۀ د لور سره مبارك شه خو مزه به دا وى چې يو تعليم يافته هلك د كالج پروفېسر او يوه غېر تعليم يافته جينۍ سره وادۀ؟ چې هغه به ستا د خوى. بوى نه اشنا وى نۀ ګذاره به اوكړى ځكه چې ستا خوى هسې هم ډېر شريف او مزاج متحمل دے. خدائے دې نۀ صبر دركړى. زما دا سودا وه چې درشم او ستا كور والا ضرور اووينم ما خو لا د خپل ژوند تېرولو د پاره څۀ پروګرام هډو تيار كړے نۀ دے.

څۀ ورځې خو په دې انتظار اووم. چې كېدے شى چې شوكت راشى او زمونږ د ژوند دا ګاډے په شريكه ندړه اووهى. خو ستا تلل او بيا نۀ راتلل د دې خبرې واضحه ثبوت دے چې تۀ زما د لارې نه بيل تلل غواړې. بحيثيت د يو تعليم يافته جينۍ زما دا حق نۀ دے چې تا مجبوره كړم

چې نۀ دې خالی زما د ژوند ملګرے شې. دا د هر سړی خپله خپله خوښه وی. خو کۀ چرې داسې شوے وے نو ډېر ښۀ به شوی وو.

دا ما چې کومې اووې. په دې غرض نۀ دی چې ماته د وادۀ د پاره زلمے نۀ ملاوېږی. خو افسوس په ذې دے چې ماته تۀ او صرف تۀ ښۀ لګېدې. زما دا خواهش وو چې موښږ به همېشه د پاره د یو بل شو. دلته هم ستا اراده ښۀ واضحه وه. ما خپل زړۀ مطمئن کړے وۀ او چې کله راغخه همزولو تپوسونه کړی دی نو ما ورته په انتخاب کښې ستا نوم وړاندې کړے دے. ټولو زما په خوښه افرین وئیلے دے. چې واقعی یو کلی وال زلمے، حسین تعلیم یافته، قابل او بې انتها شریف فرزانې کۀ چرې دا ستا نصیب شی نو تاله په خپل نصیب فخر پکار دے.

خو افسوس چې زما په نصیب نۀ ما فخر اوکړو او نۀ زما همزولو جینکو. پته نۀ لګی چې ستا به نصیب په چا فخر کړے وی. مور او پلار ته دې د دې خوشحالۍ زېرے ورکړه. کېدے شی چې تا خپله خوښه د هغوی په خوښه باندې قربان کړی وی. او د هغوئ په مرضۍ دې وادۀ کړے وی دا د فخر خبره ده چې ستا غوندې یو تعلیم یافته زلمے خپل ژوند د مور پلار د اخری مرضۍ د پاره وقف کړی. مبارک شه شوکته دا قربانی دې بیا بیا مبارک شه. خدائے

دي کړی چې هم داسې شوی وی. او دا مې یقین دے چې ضرور به داسې شوی وی. ستا نه زما هم دا توقع کېدے شی. ځکه چې ستا د ترۀ لور ستا په کور ستا په انتظار ناسته ده. ستا د مور پلار هغه هم خوښه وه او تۀ د هغې هم خوښ وې دوه مرضۍ په یو مرضۍ نۀ شی قربانېدے. خو زما خوښه د هغوئ په خوښه قربان شه.

په اخر کښې به صرف دا اولیکم چې کچرې تا د خپلې ترۀ د لور نه علاوه د بلې جینۍ سره وادۀ کړے وۀ نو زما د طرف نه درته بخښنه نشته. ځکه چې دا بیا زما حق دے. ما په خپل زړۀ درنې تیرې (وزانداره کتې) ځکه اړولې دی چې ستا د ترۀ د لور حق زما په حق باندې زیات دے. لیکن د بل چا حق زۀ د ځان نه زیات نۀ گنړم. ما پوره د تفصیل نه خبر کړې او امید دے چې د گرمۍ په چهتیانو کښې زۀ راشم پشمینه به هم ستا په ښځوالۍ کښې اووینم. څومره بختوره او خوش قسمته ده چې ستا غوندې شریف او ښۀ خاوند ورته تر لاسه شو. خو دا درته وایم چې تۀ هم د ښۀ سړیتوب نه کار واخله. کورنې ژوند دې یو طرف نۀ تېرېږی. خبر دے کۀ هغه بې تعلیمه ده خو تۀ ورسره ناکام کوه. ستا تعلیم صرف ستا د ځان سره تعلق ساتی. نۀ چې د هغې د ژوند سره ما خو صرف داسې اوگڼه چې په لارې یو دوه مسافر ملگری شوی وو. یو خپل منزل ته اورسېدۀ. او

بل لا ګرځی د منزل لټولو د پاره تکرې وهی. خدائے دې اباد او خوشحاله لره. د خط په انتظار به یم.

والسلام

ستا خوښونکې او ستا په انتظار اوسېدونکې

فرزانه

شوکت خط په جیب کښې کېښودلو او یو سوړ اسوېلے یې اوکړو. زما د تره لور پشمینه زما ښځه لیکن اجړه چې ما ورسره وعده کړې ده. دا به څه کېږی. یوه بې تعلیمه، بې څوکه بې نسبه ښځه شپونکې. خلق به څه وائی دا څه اوشو. ما واقعی په فېصله کښې تېزی کړې ده. ماله د دلدار خبره منل پکار وو. اوس پکار ده چې ګرندے لاړ شم او هغه منع کړم چې بابا ته څه اونه وائی. اهو دا خو یولس بجې دی هغه به خامخا اوس خبره کړې وی. ځکه چې په هغه ما ډېر زور پرېښتلے وو. خېر اوس چې څه وو هغه اوشو شوکت د تندی نه په رومال خوله (پسینه) اوچه کړه بیا ئې په اوچو شونډو ژبه اووهله. ګهړی ته ئې اوکتل او بیا ئې پورته. نو پروفېسر حلیم د هغه مخکښې ولاړ وه.

**حلیم:** څه دی شوکته. نن سحر راسې څه ډېر ګډ وډ ښکارېږې. تا سحره د چاچا نه زما تپوس کړے وه څه کار وه څه ؟

**شوکت:** نانا اے هیڅ نه خو ما وې چې څوك، څوك راغلی دی. نو چا چا اووې چې حلیم صېب راغلے دے نور لا څوك نه دی راغلی.

**حلیم:** اخر څه وجه ده رنګ دې زیړ دے. بله دا چې پښې کله راټولې کړې او کله ئې اوغزوې. اخر مونږ خو خبر

کړه کور خو خیر دے کنهٔ؟

شوکت: جي ها. کور بالکل خیر دے. خو بیګاه مې طبیعت لږ خراب وهٔ ټمپریچر مې وهٔ. هغې سره لږ ګډه وډه ووم نور هیڅ تکلیف نشته.

حلیم: چې ټهیک نهٔ وې نو کالج ته ولې راتلې. په لیو (Leave) به پاتې شوے وې کنهٔ.

شوکت: زما خو دا خیال وهٔ چې پهٔ لیو پاتې شم. خو بیا مې طبیعت لږ ښهٔ غوندې شو. نو راروان شوم. دلته وخت لږ ښهٔ تېرېږی حلیم صیب کهٔ فکر کوې.

حلیم: او نو دا خو ده. لیکن ماته افسوس دے چې نن ولې ستا طبیعت د نور کله نه بالکل مختلف دے. ستا لاس کښې دا خط د چا وهٔ.

شوکت: دا زما د یونیورسټۍ د یو ملګری وهٔ. د خپل وادهٔ حالات ئې پکښې لیکلی وو چې کومه جینۍ ئې خوښه کړې وه د هغې سره ئې وادهٔ اوشو ډېر خوش نصیبه دے.

حلیم: زهٔ خو دې په سر ولاړ ووم خط د یوې جینۍ وهٔ نور مې کتلے نهٔ دے خو پهٔ اخر سر کښې ئې فرزانه لیکلې وهٔ دا څنګه کېدے شی.

شوکت: او ستا سو خبره درسته ده فرزانې سره ئې وادهٔ اوشو

حلیم: مبارک دې شه دا خو ډېر ښهٔ اوشو چې ستا

دوست وۀ او د هغۀ وادۀ د هغه په مرضئ اوشو. تۀ به ډېر خوشحاله شوے يې.

**شوکت:** ولې به نۀ خوشحالېږم. د يو دوست خوشحالي د بل دوست خوشحالي نۀ ده؟ ښۀ ده حليم صېب تاسو به ماله د يو څلورو ورځو د ليو درخواست اوليکئ. پرنسپل صېب خو نشته تاسو به ئې ورله ورکړئ. زۀ به د دې دوست دوادۀ مبارکۍ له هم لاړ شم او لږ ارام به هم اوکړم. نن خو مې پيريډ اخستو ته هډو زړۀ نۀ کېږي. نن به تاسو زما پيريډونه واخلئ. زما په دې سر هم درد دے داسې ځړيکې ځړيکې کېږي چې هډو برداشت ئې راته ګران دے. لاړم سلام عليکم!

**حليم:** په مخه دې ښه ژوندے اوسې او خوشحاله اوسې.

شوکت د کالج نه رارروان شو. د غرمنې بس پۀ انتظار کښېناستو. په سوچ کښې دے چې څۀ به شوي وي چې ګړي ته ئې اوکتل نو د بس راتلو ته لا نيمه ګېنټه پاتې وه دا خيال ئې اوکړو چې راشه د کور د حالاتو خو هسې هم پته نۀ لګي. چې د فرزانې د خط جواب خو ورکړم کنه. د يو دوائي فروش دکان ته راغے.

**دوائي فروش:** پروفېسر صېب پخېر پخېر راځئ جي

کښېنئ خبر خو دے کنهٔ.

شوکت: ستا به دا خيال وی چې دے دوائی اخستلو له راغلے دے خو.....

ډاکټر: نا نا دا خو صرف ستا خيال کېدے شی زما خيال ټيك دے.

شوکت: ستا څهٔ خيال دے اووايه کنهٔ.

ډاکټر: زما خو دا خيال دے د بس راتلو تـه لا وخت ډېر دے او تاسو د کالج نه وختی راغلی يئ. اميد دے چې د انتظار وخت دلته تېرول غواړئ.

شوکت: بالکل صحی دې اووې ډاکټر صېب. هم دا مې خيال وهٔ تاسو واقعی پېژندلے ووم او بله دا چې زما د يو دوست خط راغلے وهٔ ما وې چې د هغې جواب به ورکړم.

ډاکټر: کـه طبيعـت مـو منـی چـې يـو پيالـه چـائے درباندې اوڅښوم.

شوکت: زړهٔ خو مې نهٔ غواړی خو.

ډاکټر: د مخامخ هوټل والا تـه اواز کـوی، يـا هلکـه خبرو يو دوه کپه چائے را اولېږه.

شوکت: يره جی تکليف مهٔ کوئ.

ډاکټر: اوڅـښه چـې طبيعـت دې ښـه شـی. داسـې ښکاری چې سحر دې هم نهٔ دے څښکلے.

شوکت: دا دې ښنگه اوپېژندم چې ما سحر چائے نهٔ

دے ځبنګلے.

ډاکټر: زمونږ خو تجربه ده کنه. د طبيعت نه پته لګوو.

ډاکټر صيب او شوکت چائے او څښو د چايو نه پس ئې د هغه نه پيډ را واخستو او د فرزانې د خط په جواب ور سر شو.

زيړې پاڼې راپرېوزي په شنو ونو خزان راغے
هجر راغے بېلتون راغے په زړۀ نوے ارمان راغے
بلبلان او بوراګان په زوږ سوران دي په چمن کښې
او ګلان واړه ناله شو په ژړا مې باغوان راغے

خوږې قدردانې او مهربانې بلکې همدرې فرزانې په حيا اوسې.

السلام عليکم!

ستا غوندې زما زړۀ هم غواړي چې پاس ليکلے شوے شعر د کاغذ نه وران کړم خو دا هم د مظلوم اواز دے. او خدائے دې کړي چې هغه مظلوم زما غوندې شي. معافي غواړم ځکه چې ستا الفاظ مې درته اوليکل. خو څۀ اوکړم بله چاره نۀ وه.

ستا د مينې او همدردۍ ډک خط راغے. خو په داسې وخت چې اوبۀ د سر نه اوړېدلې وې حالات بالکل بدل دي. او هو دا خو مې هډو هېر شو چې ستا طبيعت څنګه دے.

ښهٔ شوه چې تهٔ په نوکرۍ شوې يې. ځکه چې ستا مور پلار ستا د نوکرۍ ډېر خواهشمند وو. زلمے زوے يې نهٔ وهٔ او ستا د سهارې ورته ډېر ضرورت وهٔ. ماته به هر وخت دا فکر او غم وهٔ هسې نهٔ چې فرزانه ترك نوكري اوكړى. ځکه چې مور پلار به ئې ډېر په تکليف کښې شى. خو ستا د خط نه معلومه شوه چې تهٔ ګرلز کالج کښې د پروفېسرۍ په عهده ئې. يقين اوکړه زړهٔ مې ډېر خوشحاله شو او مطمئين شو ځکه چې بوډاګانو مور پلار ته سهاره ورکول د اولاد اولنى فرض دى.

د کالج او يونيورستۍ ورځې زما هم ترمخه مخه کېږى. ستا د خط نه وروستو خو مې ټول ماحول راياد شو او غرېب اونيولم.ما وې خدايه هغه څومره ښهٔ وخت وهٔ. دا اوس د ذمه وارۍ دا ژوند خو ډېر ګران دے. هلکوالے يو ځائے ګرځېدل راګرځېدل. لوبې ټوقې ټقالې. ازاده ازادى نهٔ د چا پابندى نهٔ د کلى محلت غم ښادى. نهٔ چاته ناسته پاسته. خو صرف او صرف خپلهٔ مرضى وه. هائې يا ئې. کله ناکله مې زړهٔ ډوب غوندې شى. خو بيا د حوصلې نه کار واخلم چې ټول عمر خو به مونږ په يونيورستۍ کښې نهٔ وو کنهٔ. نورو جونئر کسانو ته هم موقع ورکول پکار دى. تاسو د کالج متعلق ليکلى دى واقعى ډېر ښکلے ماحول دے. رنګين موسم رنګين ملك او ښائسته خلق خو دا هر څهٔ چې

يو ځائے شی نو تکليف او مصيبت تري جوړ شی. دا په دي وجه نۀ ليکم چي ماته يواځي ځۀ تکليف دے خو نا هسي دا کله نا کله کيږی. او داسي ځکه کيږي چي دي ته ژوند وائی او ژوند د دي ښکته پورته نوم دے. کله سخته او کله راحته. کله غم او کله خوشحالی. کله ژړا او کله خندا. خو زما نن سبا عجيبه غوندي قسمت جوړ شوے دے چي هډو خوشحالی پکښي نشته. تۀ به حېرانه شي چي ولي. اوس يو داسي وخت راروان دے چي د دروغو نه پکښي کار نۀ اخستلے کيږی. ځکه زما ژوند د ژوند او مرګ په اخره مرحله دے. تا چي ځۀ ليکلی دی زۀ په هغي کښي رشتينے نۀ يم. تا واقعی فرزانې زما سره محبت کړے وۀ ما له دي ژوند راکړے دے. ما ټول سبق صرف ستا په همت او حوصله وئيلے دے. خو زۀ افسوس کوم چي زما په خيال کښي دا راغلي چرته نۀ ده چي تۀ به لا هم زما سره وادۀ کول غواړي. کاش تا هلته دا اظهار کړے وے. افسوس تا زۀ اول خبر کړے وے. زما يو زړۀ وۀ هغه به تا اخستلے وۀ. په دومره مصيبتونو خو به نۀ پېښېدم کنۀ. فرزانې ډېر ظلم دي زما سره اوکړو.

زما په مخکښي اوس يو داسي لاره ده چي نۀ پري تلے شم او نۀ واپس کېدے شم. ما خو دا خيال کړے وۀ چي د خپل ترۀ د لور سره به د پلار په مرضی چارو ناچار وادۀ

اوکړم. خو افسوس چې هغه اونهٔ شوه ځکه چې پرون زهٔ په چکر وتلے ووم. او یوه شپونکۍ جینۍ مې په نظر شوه. بالکل یوه حادثه او اچانك واقعه وه. لکه د پاګل مې زړهٔ ورکړو. هغې هم راسره د وادهٔ وعده اوکړه. د خپل دوست په خلې مې پلار ته وینا کړې ده. لا کور ته نهٔ یم تلے. خدائے خبر چې څهٔ به شوی وی او څهٔ به کیږی. خیر هر څهٔ چې کیږی دا اوس زما اخری فیصله ده. چې ما وعده کړې ده نو زهٔ به ضرور د دغې شپونکۍ سره وادهٔ کوم. څنګه چې تا لیکلی دی چې کهٔ چرې تا د خپلې ترهٔ د لور نه علاوه د بل چا سره وادهٔ اوکړو نو دا به زما سره ظلم وی. زهٔ ستا د لفظونو ډیر قدر کوم. ما به ستا د پښو تلی ښکل کړی وے. خو اوبهٔ د ورخه تیرې دی اوس هیڅ نهٔ کیږی. زما زړهٔ یو داسې فیصله کړې ده چې زما په ماحول کښې په رواج کښې نا منظوره ده. دا فیصله نهٔ زما خاندان منی نهٔ یاران دوستان او نهٔ د کلی محلت خلق خو ګورم چې قسمت څهٔ کوی. ځکه چې تر اوسه لا زهٔ پخپله فیصله ټینګ یم. ستا د ارادې مبارکی در کوم.

مبارك شه او د خپل ځان په حق کښې به دا اووایم چې زهٔ یو بدقسمته انسان یم. ګورے چې د چا ازار راپسې شوګنې ماله داسې فیصله نهٔ وو کول پکار.

فرزانې! اوس خو ستا د دعاګانو ضرورت دے. خدائے مې دې انجام ته خیر کړی. د راتلو کوشش مهٔ کوه ځکه چې

زما د مستقبل پته نهٔ لګي ګورے چې خهٔ مخه پېښېږي. کهٔ چرې زما کړې وعده د شپونکي سره پوره نهٔ شوه. نو بيا به ژوندے نهٔ يم. او کهٔ چرې پوره شوه نو خو به ستا په مخکښې مختورے شم. د سترګو اوچتولو قابل به نهٔ شم او دا نهٔ شم پرداشت کولے چې ستا په مخکښې شرمنده ولاړ يم. اميد لرم چې ما به مجبوره اوګڼې او معاف به مې کړې. يو طرفته ستا زړهٔ مات شو. بل طرفته پشمينه او وړه خور کلثوم هم ژاړي. پلار او مور مې هم په زوره سوران دي او يارانٌ دوستان هم. خو دا زما فېصله نهٔ ده بلکې زما تقدير دے چې څهٔ کېږي هغه ماته منظور دي. بخښنه غواړم. مجرم به مې نهٔ ګڼې محبت يوه لوبه او ناچارى ده. د سړي حيثيت او عزت، عقل او هوش هر څهٔ تاله واله کړي. خدائے دې په عزت او په خوشحالو لره فرزانې. امين

ستا خېراندېش بلکې د لارې
يو شوکېدلے ملګرے شوکت

# تقدیر

شوکت خط بند کړو او په ډاکخانه کښې یې واچولو.
بیا راغے او په دکان کښې کښېناستلو. ناڅاپې غر هر شو.
شوکت پاسېدو. وې ډاکټر صېب جوړې بس راغے.

**ډاکټر:** او صېب بس راغے خو ولې تادی کوې.
ډوډی به مو خوړلې وه نو تلے به وې.

**شوکت:** یره ډاکټر صېب:

زړهٔ مې غواړی چې تر ډېره وخته پورې دلته ناست
وے خو بس راغے. تقدیر ته به نهٔ وه منظوره. بعض ډېر
معاملات داسې دی چې صرف د تقدیر په لاس کښې وی.

**ډاکټر:** او نو تقدیر خو د مسلمان د پاره یوه ښه
منونکې فېصله ده.

**شوکت:** ښه ده کښینئ جی زهٔ لاړم.

**ډاکټر:** په مخه دې ښه خوشحاله اوسې.

شوکت لاړو او په بس کښې کښېناستو د بس د
غرهر اواز شو. خو ډرائیور کوز شوے دے. خلق ټول په
انتظار دی چې ډرائیور ولې نهٔ راځی. څوك وائی چې

ناوخته دے ځوك وائی ګرمی ده ځوك وائی یره تنګ شو. دا ډرائیوران هم هسې زورور دی. مونږ ئې په بیعه اخستلی یو. دوئ به چائے څښی او مونږ ئې لکه د مېلې د ځاروو په بس کښې منډلی کښېنولی یو. لیکن شوکت بالکل خاموش ناست دے. هیڅ غږ نۀ کوی ځکه چې د هغۀ په ذهن کښې سحرنئ او بېګانئ خبرې ګرځی راګرځی چې څۀ به شوی وی ګورے چې تقدیر ته به څۀ منظوره وُه. کېدے شی چې ننئ ورځ زما د ژوند اخری ورځ وی او دا هم کېدے شی چې بابا دې ته تیار شوے وی. چې وادۀ دې اوکړی. دا هیڅکله نۀ شی کېدے هغه به خامخا انکار کړے وی، دومره تقدیر زمونږ نشته. معلومېږی داسې چې په تقدیر کښې مې خودکشی ده. خو نا کېدے شی چې "خدا" ئې کړی وی. د خدائے د رحمت نه نا امیده کېدل هم ظلم دے. دے لا په دې سوچ کښې وۀ چې ډرائیور کوز شوو کسانو ته د راتلو د پاره هارن اوکړو. د ګرمئ موسم وۀ ډېر خلق پکښې شربت څښلو د پاره کوز شوی وو. کوز شوی خلق ټول راغلل په خپل خپل سیټ کښېناستل او لارئ روانه شوه. وخت تېرېدۀ خو چې شوکت خپل کلی ته رانزدې کېدو نو د زړۀ درزا ئې رو رو تېزېده. ځکه چې اوس هغه یو داسې اخری منزل ته روان وو چرته چې د هغۀ د ژوند کېدونکې فېصله تر مخه وه. لارئ راغله او د کلی په سټاف باندې اودرېده.

شوکت د لارۍ د ډډې په شيشه کښې اوکتل. دلدار يې اوليدو. حېران غوندې شو چې دلدار دا وخت څۀ کوی د ے د لارۍ نه راکوز شو او په دلدار يې اواز اوکړو.

**شوکت:** دلداره څۀ کوې؟ د لارۍ په انتظار ئې کۀ.

**دلدار:** او او زۀ خو هم ستا په انتظار ووم. ما وې هسې نه چې کورته رانۀ شې. او چرته بل جوا مخه اونيسې.

**شوکت:** پرېږده دا خبرې څۀ چل اوشو. بابا څۀ اووې.

**دلدار:** دا به بيا کېږی څه چې څو. په ارام به شې نو خبرې اترې به بيا کوو. هسې نۀ چې د چا سره تلے وے نو کوم ځائے به مې کتې. ګاډی لارۍ مې سينکولې په تپو سونو مړ شوم. سړيه.

**شوکت:** ولې به بل خوا تلم د بل خوا تلو څۀ ضرورت وۀ څه:؟

**دلدار:** نا بعض وخت سړے هسې ديد کوره شې. نو ذهن ئې بيا کار پرېږدی او د کور په ځائے بل خوا تګ ته ئې زړۀ اوشی.

**شوکت:** زۀ په هغو کسانو کښې نۀ شم شمېرلے شوکته. ما خو چې څۀ اووې نو په هغې مې عمل وی ما خو په خپل تقدير عمل کړے د ے. ګورم چې څۀ مې په تقدير کښې دی. هم په هغې به عمل کوم يا به مې پلار تيار شی او يا مې مرګ د ے.

دلدار: بس خو د مرګ نوم دې ګوته کړے دے. تۀ ولې دومره نا اميده شوے ئې. تۀ خو ډېر کلك او د حوصلې سړے ښکارېدې. خو معلومه شوه چې هډو حوصله درکښې شته نۀ. سړے د ميشتې او تجربې نه معلومېږي. ما ته څۀ پته وه چې تۀ دومره بې حوصلې سړے ئې.

شوکت: اونو چې دا نۀ وے نور به څۀ وے. ځکه چې سوال جواب به دې نۀ وی کړی. ما خو په وعده پرېښودلے وې. چې په خپل کار کښې سړے ناکامه شی نو بدنامه د بل په سر واچوی په هغه کسانو کښې يو تۀ هم يې. چې صرف د خبرو په تېزۍ مقابله کوی. دا راته اووايه چې څۀ دې کړي، دی خبره دې کړې ده کنۀ.

دلدار: تۀ هم عجيبه سړے ئې بنده هډو خبرې ته نۀ پرېږدې. لا مونږ خو کور ته نۀ يو تلی. په لارې د خبرې کولو څه حاجت دے. هر وخت پښه نيولے غوندې ئې. څه تېز نه چې کور ته لاړ شو. بيا به ګورو چې څۀ شوی دی او څۀ به کېږی.

شوکت: اخر څۀ خو به شوی وی کنۀ.

دوئ په خبرو خبرو کښې د دلدار کره راغلل. د دلدار مور ورته کټکے سم کړو او په شکور کښې ئې ډوډۍ را واخستلې خرګکۍ ئې کېښودله اوبۀ ئې اوغورځولې دلدار او شوکت دواړو په ډوډۍ شروع اوکړه چې نيمې ته

اورسېدل نو واکدار ماما راغے.

**واکدار:** خانه پخېر راغلې پخېر. څۀ وخت راغلے وې ما خو دلدار ته وې هسې نۀ چې بل خوا تلے وی.

**شوکت:** (مسکے غوندې شو) یره ماما دا خبره راته دلدار هم اوکړه. لیکن څنګه به بل خوا تلم تقدیر ته غاړه اېښودل وو. بل خوا ته د تلو څۀ حاجت وۀ.

**واکدار:** خېر بعض وخت سړے د هلکوالی نه کار واخلی او تندی اوکړی. ډوډۍ اوخورئ ځان ښۀ موړ کړئ. هلکه دلداره مور دې څۀ څۀ پخ کړی دی کنۀ.

**دلدار:** دادا. دا څۀ د خانانو کور نۀ دے. چې ښۀ څۀ به پکښې وی. د غریب سړی کور دے. د خدائے فضل دے. د شوملو کړی د مولو سابۀ او شوتل پکښې شته نور څۀ غواړی او کۀ خانی غواړی نو دیرته دې لاړ شی زمونږ خو د غریب والی جوار او سابۀ یا سکرك دی او ورته حاضر دی.

**شوکت:** دا هر څۀ ډېر دی ماما ډېره خوږه ډوډۍ ده. چې طبیعت ښۀ وی نو خوراك هر څنګه چې وی.

دوئ ډوډۍ اوخوړله لاس ئې اووینځل شوکت په کټ کښې کښېناستلو. دلدار ورسره هم په خوا کښې دے. واکدار او ښځه ئې په بل کټ کښې دی خبرې شروع شوې.

**واکدار:** خانه ستا نه څۀ پرده. تۀ به دې کور کښې وړوکے لوئې شوې. د دلدار سره دې تول وړوکوالے وتلے

دے. مونږ ستاسو نمکونه خوړلی دی. پلار دې راسره دومره ښه کړی دی چې د بدلې ورکولو نه دی. صرف کهٔ سرونه رانه غواړی نو هم د دغې احسانونو بدلې نهٔ شی پوره کېدے. دا زهٔ ستا د مخې نهٔ وایم. تهٔ وړوکے ئې پوهه نهٔ ئې نهٔ دې څهٔ اوربدلی دی او نهٔ دې څهٔ لیدلی دی. ستا پلار چې ستا د پاره څهٔ ناکامونه تېر کړی دی. دا صرف خدائے ته معلوم دی اوس هر څهٔ وشو. صرف او صرف د پشمینې بی بی پهٔ وینا اوشو. خان خو قار شوے وهٔ تاته ښه پته ده چې قاربدونکے سړے دے. په برېتونو ئې چې لاس اووهل نو زهٔ پوهه شوم چې غصه شو. خو چې کورته وراغے نو خدائے خبر چې ستا مورته به ئې څهٔ وې. خو د خدائے فضل وهٔ پشمینې بی بی رامنډه کړه او په پښو ئې پربوتله. ستا د ارزو او خواهش د پاره ئې ورته څادر په پښو کښې کېښودلو. چې زمونږ د خاندان دغه یو زلمے دے. کهٔ چرې دا هم رانه د ګوتو بهر شو. نو څهٔ به کوو. بهر حال هغه بیا هم ترهٔ وو. د پشمینې خبرې ئې اومنلې خو په دې شرط چې شوکت به یوائې د اجرې سره نهٔ بلکې د پشمینې سره هم وادهٔ کوی. اوس ستا خوښه ده کهٔ تهٔ دا غواړې چې دوه ودونه اوکړې نو فېصله ستا په حق کښې ده. او کهٔ چرې نهٔ غواړې نو پلار دې ته یوائې هر ګز نهٔ تیاربږی چې تهٔ دې د شپونکی ښځې سره وادهٔ اوکړې. ښهٔ

سوچ اوکړه خو ښه به دا وي چې د پردۍ جینۍ نه قلار شې او د خپلې غوښتلې ښځې سره وادهٔ اوکړې. پهٔ خوئ ښه ده ښائسته ده. نیکه او شریفه ده. د هغې ستا سره د محبت او همدردۍ د دې نه سېوا څهٔ ثبوت کېدے شي. چې هغه خپله خوشحالي په ځان حراموي او ستا د خوشحالو د پاره خپل راتلونکے وخت د خفګانونو سره تړي. زما خو دغه سوال و جواب رارسول وو. خان خو وئیلي وو چې د دلدار په خلې ورسره خبره اوکړه چې دلدار هم هلك دے هسې نهٔ چې څهٔ ګډې وډې ورته اووائي. د دې وجې نه مې درته دے په لار کښې کښېنولو. چې تا سیده دلته راولي. شکر دے چې تهٔ په موقع راغلې او پوره پوره خبره مې درته اوکړو. اوس تهٔ هم ښهٔ په سوچ سمج سره دوباره فېصله اوکړه ځکه چې تهٔ د لوئے پلار زوے ئې هغه خبره اوکړه چې څهٔ ستا په زړهٔ کښې وي او زهٔ ئې ستا پلار ته اووایم.

شوکت ځوړند سر نېولے په سوچ کښې خبرو ته غوږ ایښودے ناست، وهٔ. واکدار ماما خپله خبره خلاصه کړه. شوکت سوړ اسوېلے اوکړو او سر ئې پورته کړو.

شوکت: ماما زهٔ به څهٔ اووایم تا چې څهٔ اووئیل ما واورېدل. ماته افسوس دے. لیکن څهٔ اوکړم ځکه چې دوه ښځې ساتل ګران کار دے. نو مجبوري هم یوه بلا ده. د محبت د پاره قرباني هم کول دي. دا خبره زهٔ صرف او صرف

د خپل محبت د پاره منظوروم تهٔ زما پلار ته اووايه چې زهٔ د پشميني سره وادهٔ کولو ته تيار يم. ماته هيڅ اعتراض نشته.

واكدار: مبارك شه خان ګله! ډېره ښکلې فېصله دې اوکړه زما هم دا يقين وهٔ چې تهٔ به داسې په هوښيارتيا فېصله کوې.

دلدار: اونو د غټې جالې مرغوړے دے. ولې به بې سوچه خبرې کوی.

شوکت: مازغهٔ مې مهٔ خوره دلداره هر څهٔ چې اوشو په تقدير اوشو ګنې دا ډېره ګرانه خبره ده چې يو تعليم يافته هلك دې په دې دور کښې دوه ښځې اوساتی.

دلدار: کهٔ مازغهٔ دې نهٔ خوړے کېږی خانه نو يو عرض اوکړو. چې په نوی دور کښې يو تعليم يافته زلمے څنګه د يوې شپونکۍ سره وادهٔ کوی؟

شوکت: دا زهٔ نهٔ کوم زما د زړهٔ مجبوری وه.

دلدار: دا هم مجبوری ده چې تهٔ به د پشميني سره وادهٔ کوې. اميد لرم چې پشمينه به ستا د ژوند ښه ملګرې ثابته شي او بله ګورے چې دٰ کوم بڼ لرګے دے. ماته خو د هغې په سترګو کښې چالاکی او مکر ښکارېدهٔ.

شوکت: داسې مهٔ وايه دلداره کهٔ ورته زما په سترګو کتلی وے زما د زړهٔ درزا دې اورېدلی وے نو تا به هيڅ کله

دا نۀ وو وئيلی چې د هغې په سترګو کښې مکر وۀ. خو....

دلدار: او زۀ وايم چې کۀ څرې تا وزته زما په سترګو کتلی وے نو هغه به ورته يو ساده شپونکۍ نه بلکې يوه بازاری خرابه او چالاکه ښځه معلومه شوې وه. خو څۀ اوکړم حېران يم چې تا ولې دومره په جذباتو سره فېصله اوکړه.

شوکت: اوس دا خبرې پرېږده ماما ته اووايه چې بابا خبر کړی چې څۀ کېږی هغه اوشي.

واکدار ماما حجرې ته راغے هيبت خان ناست دے. بالښت ته ئې ډډه لګولې ده. د قهره تک سور دے. په بريتونو کښې ئې ګوتې پرتې دی. کله ئې تاو کړی او کله ئې مړاوی. کله پټکے په سر کېږدی او کله ئې په کټ کښې. کله پښې پورته کړی او کله د کټ نه کوزے. چې په واکدار ئې سترګې اولګېدې نو اواز ئې ورته اوکړو. واکداره څۀ چل اوشو. شوکت راغلے دے کنۀ.

واکدار: او جی شوکت راغلے دے. زمونږ کره دے. سحر راسې اوږے وۀ دلدار ورله ډوډۍ کړې وه. ډوډۍ ئې اوخوړه په ساه شو. ستا د خلې خبره مې ورته پخپله اوکړه. هغه ډېره په خوشحالۍ سره په دې رضا ښکاره کړه چې ټهيک ده زما د خپل پلار حکم ته سرټيټ دے. زۀ به ضرور د پشمينې سره وادۀ اوکړم.

هيبت خان: او تا ورسره دا خبره اونۀ کړه چې د اجرې نه

قلار شي. دا د خاندان بې عزتي ده.

**واكدار:** ډېر مې پوهه كړو نو هيڅ اثر پرې اونهٔ شو. او دا ئې اخرنۍ وينا وه. چې دا زما د تقدير سوال دے. اجړه اوس زما تقدير دے. د پشمينې سره وادهٔ ئې صرف ستاسو مرضي كړې ده. كنهٔ دې ته هم تيار نهٔ وهٔ. اوس خوښه ستاسو ده.

**هيبت خان:** دا د هغهٔ اخري فېصله ده چې زهٔ به خامخا د اجړې سره وادهٔ كوم.

**هيبت خان:** ډېر به ستومانه شې واكداره! منګلې به اومروړې خو وخت به تېر وي. اوس زهٔ څهٔ اوكړم د زوى مرګ ته نهٔ شم تيېنګېدے ګنې ما به نن وژلے وهٔ. خو د پشمينې هغه لوظ او ژړا مې مجبوره كړې. نو خاموش شم كنهٔ دا بې عزتي زهٔ نهٔ شم برداشت كولے چې په لارې ګرځېدونكې ښځه خپل كور ته راولم. ښه ده نو دا ورته اووايه چې څنګه ئې خوښه وي هغه دې اوكړي خو دا يوه دې واوري چې د وادهٔ پروګرام به نهٔ جوړوى شپونكې دې صرف په اس سوره راولي. او په جدا كور كښې به وي. دلته زما كورته به ئې نهٔ راولي. او د پشمينې وادهٔ به ښهٔ په ډول سينګار كېږي هغه به دلته وي.

**واكدار:** دا خو ستاسو خوښه، په دې كښې د هغه څهٔ كار دے. چې څهٔ ستاسو حكم وي هم هغه به كېږي.

هیبت خان: زما څۀ حکم دے. اوس خو د هغۀ حکم دے ما په دۀ تعلیم د دې د پاره کولو چې دے به په شپونکۍ مئین کېږی. خو خېر دا به تقدیر ته منظوره وه او دا ورته بیا وایم چې هیڅوك د دې نه خبر نۀ شی چې د شوکت وادۀ دے. خو غلے دې دے او دلدار سره د ملګرو لاړ شی او شپونکۍ دې د برپلو هغه غټې کوټې ته راولی. او واکداره کوم نوکر چې په هغه کوټه کښې دے. هغۀ ته اووایه چې کوټه خوشې کړی. اوس دې لاړ شی خپله ښځه دې بیا د نورو خلقو سره ګرځېدو ته نۀ پرېږدی.

واکدار کورته راغے. ټوله قیصه ئې شوکت ته بیان کړه. شوکت بیا په سوچ شو چې اوس به څۀ کېږی. وادۀ خو داسې نۀ کېږی. څۀ ورکول غواړی. جنجیان بوتلل غواړی. دا څۀ اوشو. د دې نه خو د بابا انکار ښۀ وۀ. نۀ چې اقرار. دا څنګه وادۀ دے ماما. وادۀ دې ته وائی؟ زۀ به څنګه لاړشم په څۀ سترګو به لاړ شم؟.

واکدار: خېر دے بچیه کۀ ته شرمېږې نو دلدار به سره د یو دوو دریو نوکرانو لاړ شی. او په اس سوره به اجړه راولی. او کوټه ورته زۀ اوزګاروم چې دوئ راځی ما به ځائے ځائیګے ټیك کړے وی. تۀ هیڅ فکر مۀ کوه.

دلدار: اوکنۀ خانه دادا ټهیك وائی ستاسو تلل خو هسې هم مناسب نۀ دی. زۀ به لاړ شم شاید چې هغوئ به لا

لرې وتلی هم نۀ وی. کېدے شی چې دوه درې پړاوه لرې ئې لاندې کړم.

واکدار: خو څوك به د ځان سره بوځي دلداره؟

دلدار: هر څوك چې مې بيامونـدل خو څوك ډرسوباړی به اوګورم نو.

دلدار سره د يو څو ملګرو روان شو په منډه منډه تېز تېز روان وی. مابنام کېدونکے وۀ. چې دوه درې پړاوه لرې لاړل. نو د مابنام تيارۀ خوره وه. په يو ځائے کښې يې د سړك نه لرې بيرته اور اوليدۀ: ګډې بيزې پرتې وې. د سپو د غپا اوازونه راتلل. د اسونو ششنهار هم ختلو. دلدار خپل ملګرو ته اووې چې جوړې دا ځائے اجړه به هم دلته وی. تاسو اودرېږئ او زۀ اواز کوم.

دلدار: اجړې يا اجړې، خړې ترور يا خړې ترور.

خړه: . يا "هاؤ" څوك ئې چې په دې وخت نارې وهې.

دلدار: څوك نارينه را اولېږه كار مې دے ورسره.

لاجبر ماما سره د خشاكی راروان شول او د سړك غاړې ته راغلل. څوك ئې څۀ وائې.

دلدار: تاسو ديخوا راشئ خبره درسره كوم

دوئ ئې ځان له کړل او ورته ئې اووې. زۀ شوکت خان رالېږلے يم. اجړې ورسره پرون د وادۀ لوظ کړے وۀ. هغه هم لېونے وۀ او دا هم لېونی وه. هغه خپل پلار ته اووئيل. نو

پلار ئي اووي چې ماته هيڅ اعتراض نشته. راځي دې.

لاجبر: نو ولې وادهٔ څوك داسې كوى لكه چې دا تاسو راغلى يئ.

دلدار: وادهٔ نهٔ دے ماما د مئينو زړونه يو ځائے كېدل دى. دې ته په ډول سرنا او زانګوګانو كنبې څهٔ حاجت دے. تاسو د اجړې نه تپوس اوكړئ باقى د هغې خوښه ده. جوړې جامې مې ورته راوړى دى كپړې دې بدلې كړى او هن دا يو څو كالى دى تيار مې ورته اخستلى دى. خو صرف تلل پكار دى.

لاجبر: نو ځئ به په څهٔ؟

دلدار: تاسو به يو يا دوه اسونه راكړئ. او بيا ستاسو خوښه ده كهٔ چرې يو تن راسره ځئ نو ډېره به ښه وى.

لاجبر: تاسو دا ځائے انتظار اوكړئ مونږ دا يو راخو.

دوئ زر خپل پړاؤ ته لاړل. اجړه په انتظار ده.

اجړه: دا څهٔ چل اوشو په ما پسې څوك راغلى دى كه. معلومېږى خو داسې.

لاجبر: او او اجړې په تا پسې راغلى دى.

اجړه: څه وائى. څهٔ له راغلى دى؟

لاجبر: هغه وائى چې شوكت او دې يو بل سره د

وادهٔ لوظ کړے وهٔ. خو ډېره تادی یې اوکړه داسې نهٔ وه پکار.

**اجړه:** شکر اوباسه چې ځومره دا موقع تر لاسه کېږی. دومره ښه ده. دا ډېره د خوشحالۍ خبره ده خفه کېږئ مهٔ؟ هغه دومره مئین شوے دے چې سترګې یې ړندې دی. انشاء الله چې زهٔ به خپل کار ډېر زر اوکړم. تاسو په انتظار اوسئ. ښه ده زهٔ د دلدار ځنګ ته ورځم.

اجړه، لاجبر او خشاکے د دلدار دې ځنګ ته راغلل.

اجړې ورته ډېر په مینه پخبر اووې. راځئ چې ځو تاسو به کښېنئ چائے به اوڅښئ. څهٔ سکړك او ساګ به اوخورئ. زهٔ به جامې بدلې کړم او بیا به ځو.

**دلدار:** ولې تهٔ تیاره ئې څهٔ اجړې؟

**اجړه:** د انکار پکښې څهٔ حاجت دے. ما د هغهٔ سره وعده کړې ده. او پلار مې راته اجازت راکړے دے. هغه د خان زوئے وهٔ. خپله وعده ئې ټینګه کړه. زهٔ غریبه یم ماله خو دا د خوشحالۍ خبره ده. د ګرځېدو راګرځېدو نه به خلاصه شم. ژوند خو به په ارام تېر کړم کنهٔ.

**دلدار:** او نو تا ښهٔ اووې. ستا د پاره خو ډېره ښه ده. دا هلك څوك دے اجړې؟

**اجړه:** دا خشاکے دے. زما د تږهٔ زوے ډېر ښهٔ سړے دے. دے به زمونږ سره تر هغه ځایه لاړ شی. بیا به

واپس شی. ناجائزه ده چې زهٔ ستاسو سره یواځې لاړه شم.
دوئ ډوډۍ اوخوړه بیا ئې چائے اوڅښلو. اجړې خان سنهبال
کړو. واقعی چې د شپونکیانو په رنګ کښې یوه ښاپېرۍ
رابهر شوه. ښائسته جامې، ښکلے رنګ ډېر کالی تورې
سترګې او خوشحاله خوشحاله. اجړه د دوکې د ناز نه ډکه د
خندا شنه ښکاره شوه. دلداره ماړهٔ شوئ.

**دلدار:** او ماړهٔ شو ځئ چې ځو اوس.

خړې اجړه په سترګو سترګو ښکل کړه او د مکر اوښکې ئې
توئې کړې. ورته ئې اووې.

**خره:** بچې د غټ خلقو کره سړے غټ شی خو مونږ
به نهٔ هېروې.

**لاجبر:** (خان غریب نیولے کړو) بچئے ما خو به هر
وخت یاد ساتې. خشاکے به درسره تر هغه ځایه په اس لاړ
شی. دے به خپل اس بیرته راولی. او تهٔ به پاتې شې. ګډا به
دې قسمت وو ګنې مونږ خو وې چې سخ کال به په سپین سر
کښې سپل اوکړې. لکه د ویشتلې مرغۍ رانه د سپل نه
جدا شوې. خدائے دې په خپل مقصد کښې کامیابه کړه.

**خره:** بچۍ ډېر لوئې احتیاط به کوې. د غټانو د
کورونو رواجونه بدل وی. دلداره بچیه تاسو به هم خان ته
اووائی چې ناکام ورسره کوی. دا نا اشنا ده ستاسو په چل
ول نهٔ پوهېږی. ساده غرڅنۍ جینۍ ده. او د دې سرد ئې اجړه

په وچولی ښکل کړه. خپل مقصد به نهٔ هېروې. اجړه په اس سوره شوه. قابو نيمه شپه وه چې کلی ته را اورسېدل. شوکت په انتظار وهٔ. واکدار ماما کوټه خالی کړې وه. اجړه د اس نه راکوزه شوه او کوټې ته دننه شوه. په کټ کښې کښېناستله.

تپوس ئې اوکړو. خان ځهٔ شو.

**دلدار:** خان به راشی په تا ځهٔ تادی ده.

**اجړه:** ولې به راباندې تادی نهٔ وی زهٔ راغلې د چا د پاره يم او رشتيا خشاکيه تهٔ ځه. دا دا به دې په طمعه وی. خپل سفر جاری ساتئ. زما هغه نوکری به په اس کېږدئ ولې چې اوس خو د هغې د وړلو ستاسو سره ځوك نشته. کله ناکله به زما تپوس کوئ هسې نهٔ چې هېره مې کړئ.

**خشاکے:** پروا مهٔ کوه خو چې تهٔ مونږ هېر نهٔ کړې. ځکه چې د خان سړی ښځه شوې. په غريبانانو بهٔ ځهٔ کړې. د رخصتېدو په وخت اجړې د خشاکی په غوږ کښې اووې. چې ما کله موقع بيا مونده زهٔ به تاسو خبر کړم. سره د اسونو به راسئ نور به بيا ګورو. کار اسان دے ځکه چې جدا کور دے. دلته هر ځهٔ کېږی. ځه په مخه دې ښه بې فکره اوسئ خو تادی به نهٔ کوئ هر کار ضرور ځهٔ نهٔ ځهٔ وخت اخلی. د دې خبرې سره خشاکے رخصت شو.

سړی د کور نه بهر شول. پشمينه کلثوم او د شوکت مور سره

د ګڼو ښځو راغلي او د اجرې تماشه ئې اوکړه واه دا خو واقعی د ځوارلسمې سپوږمۍ ده. ډېره ښائسته ده ټولو ښځو په جمع تعریف اوکړو. خدائے دې پرې خان خوشحاله کړی

د شوکت مور بچے دا اوس ستا د عمر کور دے. دلته به په داسې طریقه اوسېږې چې زمونږ د عزت به ډېر خیال ساتې ستا په خاوند پسې خو د جهان جینکۍ ګرځېدې خو هغۀ تۀ خو ښه کړې ئې. او زمونږ دا یقین دے چې د هغۀ عزت به خپل عزت اوګڼې او خپل عزت به د خاندان عزت اوګڼې.

کلثوم: اوس به د شپونکی والی هغه خویونه پرېږدې سم خوئ به کوې. پاکه پاکه به ګرځې. او لالاجی له به داسې خدمت کوې چې څنګه هغه غواړی.

اجره: دا اوس زما کور دے چې د هغۀ خدمت نۀ کوم نو څۀ به کوم. د هغۀ د مینې نه به زۀ غلطه فائده نۀ اوچتوم. زۀ خو د هغۀ د پښو خاورې یم.

پشمینه غلې غوندې د کلثوم خواته راغله او په غوږ کښې ورته لګیا شوه.

پشمینه: خدائے دې خبر کړی دا ښځه خو ډېره چالاکه ښکارېږی. هسې نۀ څۀ ډنډه اولړی. د کور ګوټ ګوټ ته ګوری لکه چې نن شپه تېروی او سبا تختی.

کلثوم: پښ مینې ستا په سترګو کښې هسې ازغے

ازغے کبړی داسې دې خدائے اونۀ کړی.

**پشمینه** : زما به څۀ په سترګو کښې ازغے شی. د هر چا خپل خپل تقدیر وی. خو زما زړۀ ډېر وارخطا دے خدائے دې خېر کړی هسې نه چې د خان سر ته څۀ نقصان اورسېږی او یا د خاندان څۀ بې عزتی اوشی.

لږ ساعت پس ټولې ښځې خورې شوې او اجړه سره د یو ملګرې په کور کښې پاتې شوې.

# څلورم پېژندګ

خلقو اجړه يو اځې پرېښودله. شپه نيمه تېره شوله. په حجره کښې دلدار هم سر د خوبه څوړند کړے دے او سترګې ئې پټې پټې کولې. کله به اودۀ او کله وېښ شو. شوکت هم حېران غوندې ناست وۀ.

لېونی هم د خاندان روايات مات کړل خو د مينې نشه لا هغه شان په جذبه کښې وه. روغوندې ئې دلدار ته اواز اوکړو.

**شوکت:** دلداره يا دلداره څه کۀ خوب درځی نو کور ته لاړ شه.

**دلدار:** څنګه لاړ شم چې تۀ لاړ شې بيا به ځم.

**شوکت:** عجيبه خبرې کوې يار نن به څنګه کورته ورشم. شرم دے شرم.

**دلدار:** د څۀ شرم؟ شرم خو تا شاته اوغورځولو. تا چرې هم دا ليدلې ده؟ چې څوك په لاره يوه جينۍ اووينی او خوښه يې کړی. بيا پلار ته اووائی او هغه ورله اجازت ورکړی. جينۍ دې لا ګورته نۀ وی رسېدلې او يو سړے دې په لاره کښې وادۀ کړی. دا لا هم څۀ طريقه ده. توبه مې دې

وی پـهٔ ژونـد مـې داسـې وادهٔ او مینـه نـهٔ وو لیـدلی. او س پکـښې د شـرم څـهٔ دی کـور دې خوشـې دے. څـه لاړ شـه د خپلې مئینې ښځې شپونکۍ سره ګپ شپ اولګوه. خدائـے دې کړی چې هم هغه شان رنګ ئې وی کوم چې تا لیدلے وهٔ.

شوکت: مړه د زمره اوږدې خبرې ته څهٔ حاجت وهٔ. زهٔ مالدار یم، ښائسته یم، تعلیم یافته یم، د خپلې مرضـۍ خاوند یم. ولې ماته وادهٔ ګران وهٔ. او بیا د اجړې هم مرضی وه. نو ناکام ته پکښې څهٔ ضرورت وهٔ. ښه ده تهٔ ځه او زهٔ هم لاړم. او یا راځه زما سره تر کوره لاړ شه.

دلدار د شوکت سره تر کوره ورغـے. دلدار ورته اووې خانه احتیاط کوه هسې نهٔ چې د ښځې مکر دربانـدې زیات شی. او داسې دې لېونے کړی چې هوش دې پاتې نهٔ شی.

شوکت: تهٔ غـم مهٔ کوه دلداره. زهٔ ښـهٔ تعلیم یافتـه او هوښیار سړے یم. زهٔ خپله خور، خورګنم او ښځه ښځه ګنم. د مور جدا حق وی د پلار جدا او د یار دوست جدا. زهٔ ښهٔ پوهېږم. البته د تقدیر مسئله جدا ده.

دلدار: تقدیر، تقدیر، بویه. هر څهٔ سړی تـه د خپلـه لاسه وررسېږی. ښهٔ پهٔ سوچ سمج سره ورشه. او بله دا چې دا توقع هم مهٔ لره. چې دا جینـۍ بـه تاتـه لکـه ستا د کـور د یوې جینۍ ژوند درکړی. ځکه چې دا به ډېره ناپوهه وی.

خان کورته راغـے. اجړه پـه کـور کښې ناسته وه. پـه خان یې

سترګې اولګېدې راپاسېده او سلام يې اوکړو. خان په جواب کښې وعليکم السلام اووې او روغوندې په خپل سم کړی کټ کښې پرېوتو. اجړې يا اجړې. دا رنګا مره کړه.

اجړه: ډېره ښه ده. خو څنګ به ئې وژنم. ماله خو دا چل نۀ راځی. زۀ خو د رنګا عادت نۀ يم.

شوکت: مسکے غوندې شو. راشه او دغه بره تور بتهن باندې ښکته زور کړه. نو تيارۀ به شی. اجړې تور بتهن ښکته کړو او تيارۀ شوه. زر ئې بيا پورته کړۀ نو بيا رنګا شوه. اجړه د خندا شنه شوه او دا خبره ئې اوکړه.

اجړه: دا خو مزې دی مزې. مونږ خو د غوشيانو لوګو اووژلو د لمسو او زمکو سملاستو اووژلو. دلته خو کتهونه دی او بستونه دی. کور دے اور دے. ګنهګونه ده. دا خو جنت دے جنت. چې يو سړی ته داسې کور ملاؤ شی او بل ورته ستا غوندې ښکلے خاوند. نو نور به د خدايه څۀ غواړی. بس خو دا دې اوګنی چې جنت مې په نصيب شو.

شوکت: بس دے بس شپونکی. څۀ دې هډو په سترګو ليدلی نۀ دی. دا څۀ کور دے دا خو د نوکر کوټه ده زما خپل کور دې اوليدے نو حېرانه به شې. جنت خو هغه کور دے.

اجړه: ولې خانه ستا خپل کور لا جدا دے. هلته څوك اوسی. او تۀ ولې د نوکر په کور کښې اوسې.

شوکت: زما په کور زما مور. پلار زما خور او زما بله ښځه پشمینه اوسی. دا خو زما پلار په دې شرط ماله د وادهٔ اجازت راکړے دے چې تهٔ به د هغه ټولو نه جدا اوسې. ځکه چې دا زمونږ د خاندان د رواج نه خلاف خبره ده چې یو پښتون سړے د یوې ګوجرې ښځې سره وادهٔ اوکړي. خو ستا مینې لېونے کړم ما وادهٔ اوکړو. او د هغوئ مې دا مرضی اومنله چې زهٔ به جدا اوسم. د یو لاس نه پړق نهٔ خېژی څهٔ ناکام یو تېر کړی او څهٔ بل. ما او تا په مینه وادهٔ کړے دے اجړې تهٔ به هم دلته زما سره په دې کور کښې ګذاره کوې.

اجړه: (ژړغونې غوندې شوه) د مکر اوښکې ئې توئې کړې. زما څهٔ دی. زما خو ستا مینه ژوند دے. زهٔ خو د زمکې د ځملاستو عادت یم. د بالښت په ځائے په کټه سربږدم. خو په تا مې ترس راغلے ځکه چې د یو خان نیازبین زوے د ښوښو کټونو عادت به د نوکر په کور کښې څنګه وخت تېر کړی: دا ستا ځنګ مور او پلار دی. تو لعنت شه ستا په هغې ښځې چې ته ئې د کور نه را اوشړلې. او په خپله د خانۍ په کور کښې پاتې شوه. دا لا هم څهٔ ښځه ده چې تهٔ به دلته ئې او هغه به هلته او ستا دا خور ده چې....

شوکت: اجړې دا به بالکل نهٔ وائې زما ښځه دا سې ښځه ده چې په ما باندې هرې یوې قربانۍ ته تیاره ده. زما د

مړ ترۀ يوه نخښه ده. زما د پلار ارزو ده. زما د خور مينه ده. زما د مور ښې لاس دے. دا زما او ستا وادۀ خو صرف يوه حادثه وه. دا څۀ ضروری نۀ ده چې زۀ ستا د پاره ټوله کوږمه پر پرېږدم.

اجړه. نانا زما دا مطلب نۀ دے خو دا راته بده ښکاريږی چې د يو خان زوے دې د نوکر په کور کښې اوسيږی. ما ته پته ده چې دا هر څۀ زما د پاره کيږی. زۀ خلقو ته بده ښکاريږم. ليکن اوس هر څۀ چې دی خو تۀ زما عزت ئې او زۀ ستا.

اجړې زر پوزه سوڼ کړه او د مکر اوښکې ئې يو ځل بيا په مخ روانې کړې. سونډے ئې د نازه بل خوا واړولو. سترګې ئې ښکته کړې مخ ئې بل طرف ته کوږ کړو. زۀ په داسې مينه قائله نۀ يم. کۀ چرې وادۀ او مينه دې ته وائی نو زۀ به سحر د خپل پلار سره دوباره لاړه شمه. ما ته ټوکری تياره پرته ده. خپلې ګډې بيزې ساتلے شم او کۀ تۀ رشتيا په ما مئين ئې نو زما سره به هلته لاړ شې. تاسو خانان ولې زمونږ د غريبانانو د غربت نه ناجائزه فائده اخلئ. که زۀ خپل پلار او د ترۀ ځوے پرېښودے شم نو تۀ داسې ولې نۀ شې کولے.

شوکت: لېونی کيږه مۀ اَجړې.

تا غلط خيال جوړ کړے دے. ما دا هم ستا د پاره لويه

قرباني کړې دَه. چې د پلار کور مې پرېښودلو. او ستا سره دلته د نوکر کورته راغلے یم. او کۀ چرې د دې نه هم تا زیاته قرباني اوغوښتله نو دا زړه قرباني به ختمه شي. د دې سره سره به زما او ستا دا ښځوالي او خاوند والي تر عمره عمره ختمه شي. ماته خپل عزت او مور پلار. خور او ښځه د هر چا نه خوارۀ دي.

اجړه پوهه شوه چې زما مکر کار نۀ کوي. راشه بل طرفته شه.

اجړه: ګوره خانه تۀ خو داسې قهر شوې چې (زر راغله او پښو ته یې کښېناستله). ستا نه زار شم. او درېږه چې په سر دې زور اوکړم. دا پښه راا اوچته کړه چې چاپي یې کړم. ما خو تۀ ازمائیلې چې تۀ واقعی د ښځې عزت خپل عزت ګڼې او کنۀ. ما وې هسې نۀ چې زۀ ئې لکه د ازادې مرغۍ په پنجره کښې بنده کړم او بیا به مې هډو خیال نۀ ساتې. اووایه کنۀ زۀ دې ولې دومره خوښه شوم. رښتیا اووایه چې په اول نظر مې درته اوکتل نو لېونے مې نۀ کړې او بیا دا چې لکه د پښتو مې درسره لوظ اوپالو کنۀ. سپین سر ته هم لا نۀ رم. ما وې د خپلې مور قبر ته به دعا اوکړم. خو خبر مینه غالبه شوه. پلار او مرر ئې رانه هېر کړل. په اس سوره درپسې راغلم کنۀ. هسې دې ځان قهر قهر کړو. د دې نه زیاته قرباني ما څۀ کوے شوه. چې څۀ زما نه کېدے شو

هغه مې او کړو.

شوکت: واقعي واقعي بس دے دا شته پوره وو. څۀ چې دې اووې پوره دې اووې. اهو دا برګې خو واقعي ډېرې تورې ښکاري. تۀ دا رڼا اولګوه.

اجړې فوراً رڼا اولګوله. شوکت په رڼا باندې ښکته پورته اوکتل. واقعي واقعي دا خو تک تور کور دے. خرابې برګې. لنډ تنګ کور. د میزرو کتهونه. په کور کښې د جولاګانو جالې. د مړو منږکانو سوړې. د لرګی خرګی دا ولې. بابا دلې خو ډېر زیاتے کړے دے پکار خو دا وه چې څۀ نۀ څۀ سامان خو ئې رالېږلے وے.

اجړه: ما خو درته اول اووئیل خو تۀ دا سې قهر شوې چې ناشنا یا خو به هغوئ دا خیال کړے وی چې د اجړې سره د وادۀ سامان نشته او مونږ ورله خپل سامان نۀ ورکوو. او نۀ به یې راکوی. ګنې د وادۀ کړې جینۍ سره سامان ضرور پکار وی. خو تا داسې تادی جوړه کړې وه چې قیامت وۀ قیامت. یو تبخے، نغرے او پوزے خو به دې یو اخستلې وو کنۀ. اوس به ولې د نوکر په کور کښې تش تور ناست وو.

شوکت په ژور سوچ کښې پرېوت او بار بار ئې دا واقعات ذهن ته لاړل او راغلل چې واقعي کۀ چرې ما وادۀ په تادۍ نۀ وے کړے. نو اوس به دا شرمناک حالات ولې

وو. دوئ ته ولي زۀ بد ښکاره شوم. او زر د کټه راپورته شو. زۀ لاړم اجړې ملګرې دې ویښه کړه تاسو څملی او زۀ به اوس بیا راشم.

اجړه: یره خانه دا څۀ کوې په داسې شپه ستا بهر ته تلل ښه نۀ دی. دا خو به خلق وائی چې اجړه سپېره وه وائی به چې د دوئ سترګې ښې اونۀ لګېدې. ستا دې قسم وی نن شپه بالکل بهر ته مۀ ځه.

شوکت: اجړې زۀ د دې خبرو قائل نۀ یم. خلق هر څۀ چې وائی نو وائی به. زما خپله مرضی ده. زۀ سحر د خپل پلار سره په تفصیل خبره اوکړم یا به تا د هغې د خانی کورته بوځی. ځکه چې تۀ زما ښځه ئې او زۀ د خان زوے یم. او یا به بل خوا ته مخه اونیسم.

اجړه: بل به کوم خوا مخه اونیسې چرته به لاړ شې؟ دا هم کېدے شی چې زمونږ کله به په لاره وی لا بیرته شوې به نۀ وی. دواړه به روان شو او د خپلې کلې سره به شو. شپونکی جینی د مینې د پاره هتکړی پښو کښې اچولے شی. نو یو پښتون زلمے خپل کور ځنګه د مینې د پاره نۀ شی پرېښودلے. راشه د بڼ شین طوطی شه چې والوزو.

شوکت: اجړې دا خبرې د ذهن نه بالکل لرې کړه چې تۀ به ما په دې دوکه کړې چې زۀ به د خانی دور پرېږدم او شپونکے به شم. ښځه د خاوند د مرضی خیز وی چې چرته زۀ

ژوند تېروم هلته به تهٔ راسره یې. دا زما اخری وینا ده.

اجړه: زما هم دغه وینا ده. ستا رضا زما رضا ده. خو زهٔ اوس ستا په مطلب پوهه شوم. چې تهٔ غواړې څهٔ اوله شپه د مینې وادهٔ او شرشدت څومره بده خبره ده راځه راځه په ارام خمله په قهر کار نهٔ کېږی. لږ ساړهٔ اوخوره. هغه مازیګر رایاد کړه چې زهٔ دې اولیدم او خوښه دې شوم. د وادهٔ وینا دې اوکړه او ما اومنله ما خپل پلار ته اوې او هغه تیار شو. تا خپل پلار ته اووې او هغه هم تیار شو. تا اوغوښتله چې اجړه دې بغېر وادهٔ او ډولۍ نه زما کور ته راشی. هغه هم اوشوه. تهٔ څومره خوش قسمته ئې چې څهٔ غواړې او هغه کېږی پاتې شو مونږ غریبانان خلق چې څهٔ غواړو هغه هډو کېږی نهٔ. سپوا د دې یو خواهش نه چې تهٔ مې اوغوښتلې او خدا ے راکړې. بس دے کنهٔ اوس خو قهر سوړ کړه. ما څهٔ ګناه کړې ده. سحر به خلق څهٔ وایی. په دې وخت به چرته لاړ شې.

شوکت: دا هر څهٔ منم اجړې خو دا نهٔ شم منلے چې د نوکر په کور کښې دې شپه تېره کړم. د دې نه مې ستا هغه د سفر ملګرتیا خوښه ده. افسوس کهٔ ډېر ناوخته نهٔ وے نو اوس به دواړه لاس تر لاسه ستا د پلار او خشاکی سره تلی وو. خو ډېر ناوخته شوے دے. ښه ده تهٔ خمله او زهٔ لاړم.

اجړه: نو چرته لاړې او خیال دې څهٔ دے پوهه نهٔ

شوم

شوکت: دا به سحر ګورو چې زما څهٔ خیال دے او څهٔ کول غواړم. تهٔ په قلاره څمله بس دے.

اجړه زر رامخکښې شوه او د شوکت په غاړه کښې ئې د مینې ډك لاسونه لګه د هار واچول په وچولی ئې ښکل کړه.

اجړه: دا هیڅکله نهٔ شی کېدے. اوګوره تهٔ دومره بې فکره ئې چې ما غوندې ښځه به پرېږدې او شپې له به بهرته لاړ شې. د دومره ضد څهٔ حاجت دے. کهٔ زما څه ګناه وی نو وئیلے شې. زهٔ معافی غواړم.

شوکت: ستا هیڅ قصور نهٔ دے اجړې. دا زما تقدیر دے زما د کړاؤ برخه ده. زهٔ لېونے غوندې یم چې یو څیز ته په مخه شم نو هغه کار بیا کوم. ګورے نهٔ چې تهٔ مې خوښه شوې نو. په دوو ورځو کښې مې تر لاسه کړې کنهٔ. اوس به تر سحره پورې دا فېصله کوم چې زهٔ نور په دې کور کښې نهٔ اوسېږم.

اجړه خوشحاله ده خو په ظاهره ځان ژړغونے غوندې کړی اوښکې پاکې کړی او خان ته منت زاری شروع کړی.

اجړه: تهٔ زما د سر سیورے ئې زما عزت ئې. زهٔ صرف ستا په سر دې کورته راغلې یم. ما دلته څوك پېژنی نهٔ. څهٔ وخت چې راغلم هر چا راته داسې بد بد کتل چې نا اشنا. صرف یوه کلثوم وه چې یو دوه خبرې ئې راسره

اوکړې. یوه بله جینۍ ورسره وه ګورے چې څۀ نوم ئې وۀ. هغې خو راته داسې وران وران کتل چې هډو سر سامان یې نۀ وۀ. ګورے څوک وه. هډو پېژندلې مې نۀ ده چې اوس تۀ هم خفه شې نو زۀ به څۀ کوم. بیا خو ښه ده تۀ بهر ته لاړ شه. او زۀ به خپلې د ګوجروالۍ جامې واغوندم او خپل پړاؤ ته به لاړه شم.

شوکت: خفه کېږه مۀ اجړې دا هر څۀ زما په فکر کښې دی. تۀ به په بیرته نۀ ځې. تۀ اوس زما عزت ئې او تاته چې ئې بد کتلی دی نو ما اوپېژندله. دا هغه زما د ترۀ لور ده. ښه ده کنۀ کۀ ما دا په سترګو ړنده نۀ کړه نو دا به ئې اووینی. خو دا درته وایم چې دا ضد مې کړے دے. په دې کور کښې دا شپه بالکل نۀ کوم. سحر به خپل پلار ته اووایم چې کچرې تا هغې غټ کور ته بدلوی نو ټیک ده ګنی زۀ به د کالج نه خپل کوارټر اوغواړم.

اجړه: کورټل څۀ وی خانه!

شوکت: کورټل نه کوارټر وایه دا سرکاری بنګلې وی پروفېسرانو له یې ورکوی. زما هم پکښې یوه بنګله رسی ځکه چې اوس خو ما وادۀ اوکړو. دواړه به روان شو. کله به هلته یوسو. داسې ښه ده چې زما د پلار خوایخه شی.

اجړه: زۀ خو نۀ پوهېږم خو چې ستا څه رضا وی هغه به کوم.

شوکت: بس په دې عمل دے. پشمینه به هم خوشحاله شی. زما د مور پلار شوق به هم پوره شی. نور مې څۀ لاس نۀ رسی خو دا کلے به ورته پرېږدم. او دا مې وعده ده چې په دې کلی کښې به نور نۀ اوسېږم. انشاء الله چې سبا له به ضرور د پرنسپل نه خپله بنګله وصول کړم.

اجړه: ښۀ ده چې ستا څنګه خوښه وی. د ښځې خو د خاوند په رضا رضا ده. چې تۀ څه وائې هغه به زۀ منم. دا کور هم ښۀ دے خو ستا مناسب نۀ دے. زما د پاره خو د جنت یوه ټکړه ده. غریبه ښځه یم. خو تۀ د خان زوے ئې نو د نوکر په کور کښې به څنګه اوسېږې.

شوکت راروان شو. او واپس حجرې ته راغے. سم کړے کټ ئې بیانۀ موندو. نو په پیارمه کټ کښې سملاستو. وې سحر به ګورم چې څۀ کېږی. نن شپه هم د شوکت د ژوند یوه خرابه شپه وه ډېر په سوچونو او فکرونو کښې ډوب وو. یو طرف ته به د حسن او رنګ په هغه خړ سېلاب کښې لاهو شو. چې زړۀ به ئې دا هډو غوښتله نۀ چې اجړه هېره کړم. بل طرفته به یو هوښیاره تعلیم یافته او یو زلمی دا سوچ اوکړو چې دا مینه نۀ وه یوه جذبه وه. بدفعلی وه. شېطانی حرکت وۀ. اوس د دې انتقام ته ځان تیار کړه. تا د خاندان د حیثیت نه بغاوت کړے دے. او د بغاوت انجام څۀ وی. بیا به ئې زړۀ له تسلی ورکړه. څه خبر دا سې

کېږي. دا ژوند څۀ د چا میراث نۀ دے. چې خان دې صرف خانه وادۀ کړي. او شپونکیان دې همېشه تکرې وهي. د اجړې هم د ژوند تېرولو حق شته. هلته اجړه د شوکت نه د فرېب او مکر په ژړا کښې پاتې شوه. په زړۀ کښې ئې اووې چې زلمے ناپوهه نۀ دے اجړې ګورے. د دۀ قبضه کول راته ګران ښکاره شو. ما خو د خشاکی سره صرف د یو څو ورځو وعده کړې وه اوس به څۀ کېږي. خو بیا ئې زړۀ سنهبال کړو. او وې خندل. دا چرته کېدے شی چې اجړه اوغواړی او شوکت د زلفو د جالونو نه بچ شی زما خو د سترګو هغه جادو دے چې بنګالیان ئې هم نۀ شی کولے. زما د سرو شونډو مسکا د رخسار خوشبوئی، نازك چال نرمې خبرې خو به د شېطان ارادې هم بدلې کړي. شوکت خو وړوکے هلك دے ایله زلمے دے. دے مینه څۀ پېژنی او چالاکی څۀ پېژنی. هوښیارتیا څۀ ته وائی او دشمن څۀ ته. خوارۀ څۀ وی او تراخۀ. دا کار صرف زما کار دے چې ټوکرۍ په سر مې ژوند تېر کړے دے. خریز کو مې پښې سورې سورې کړې دی. د سرك دوړو مې پوندې چولې دی. د بڼونو لرګی مې راټول کړې دی. کوڅه په کوڅه مې رزق ټول کړے دے. خو یو داسې انتقام به تربنه واخلم چې ټول خاندان به ئې یاد لري.

دا څنګه اوشی؟ تۀ خو لکه د بندې مرغۍ راغلې او په

پنجره کښې بنده. شوې نۀ وتے شې او نۀ د څۀ نه خبرېدے شې. اوس به څۀ کېږی. خبر دے زړۀ مۀ خوره دا هم اسانه ده چې ښځه ئې کوی هر څۀ کېږی. څه اوس په قلاره زړۀ ځمله سحر به ګورو. اجړه لاړه ښځۀ سم کړی کټ ته او ختـه او څملاستله ځان سره یې اووې چې سحر به ګورو او څۀ ساعت پس په سوچ سوچ کښې اوده شوه.

# مصرې جانه

مصرۍ جان د خانانو د کور یوه پخوانۍ اوسېدونکې ښځه وه. کلثوم، شوکت او پشمینه ئې په لاس کښې شوی وو. او واړۀ واړۀ ئې لوئې کړی وو. د دې کور د ګټې ګټې سره د هغې داسې محبت وۀ لکه د خپل کور سره. او وَلې به نۀ وو چې د ځوانۍ هغه عمر هغې دلته تېر کړے وۀ. د خاوند کور نه مروره شوې پېغله وه خو انتهائی ضدی وه. چې دلته راغله نو هم داسې پاتې شوه. اوس مصرۍ جان د دې کور مدعی ګڼلے شی چې کله د شوکت خان مور چرته ځی د کور کونجیانې (چابیانې) مصرۍ جان ته حواله کړی او چې بېګاه د شوکت د نوی وادۀ نوې شپه وه نو مصرۍ جان هم ورسره په کور کښې وه. د دې نه زیات اعتبار څۀ کېدے شی. مصرۍ جان د ژوند خوږو، ترخو تودو سړو ډېره زپلې وه. ډېره هوښیاره وه. ټوله شپه ئې غوږ ایښودے د شوکت او اجړې خبرې اورېدلې وې. شپه ئې روڼ کړه. تصور ئې پېدا شو ویرېده چې دا څۀ اوشو سحر وختی راپاسېده په کور کښې ئې جارو اووهله. اور ئې بل کړو

چائے ئې په اور کېښودلې. او اجړه ئې وېښه کړه.

مصری جان: پاسه اجړې پاسه ناوخته دے دا وخت د پاسېدو دے د کور يوه مېرمن په دې وخت پاسی لکه چې ته پاسې.

اِجړه: د څۀ شی مېرمن د کوم کور مېرمن. داسې میرمن لکه چې په اوله شپه ئې څوك خوشې پرېږدی او د کوره ترې ووځی او هغه کور چې د نوکر نه پاتې شوے وی. زۀ په داسې کور کښې نۀ شم اوسېدے او نۀ د داسې کور مېرمن توب کولے شم.

مصری جان: ساړۀ اوخوره. تۀ د دې خلقو په ژوند پوهه نۀ ئې. زۀ خو واقعی چې مزدوره ښځه یم خو داسې مزدوره نۀ یم لکه چې څنګه ستا په خیال کښې ښکارم. شوکت مې په لاس کښې لوئے شوے دے او وړوکے مې لوئے کړے دے. د خپلې مور نه پرې زما حق زیات دے او کوی هم داسې هر کار له چې ځی نو زما نه تپوس کوی.

اجړه: ستا مطلب څۀ دے. زۀ پوهه نۀ شوم تۀ وئیل څۀ غواړې؟

مصری جان: زۀ هغه څۀ وئیل غواړم چې څۀ به تۀ اورېدل نۀ غواړې تاته په خپل ښکلی رنګ ولې دومره غرور دے. حسن خو يو پناه کېدونکے څيز دے. لکه مازیګر د نمر لاړ شی پرېوځی.

اجړه: د سحر نمر چې مازیګر پرېوځی نو تهٔ خبر ئې تر ور چې څهٔ څهٔ پکښې شوی وی. ځکه چې، یوه سلامته ورځ تېره شی. نو هلهٔ شپه راشی. کهٔ زما د حسن متعلق تا ته شك وی نو دا خیال دې په ترخ کښې کېږده زهٔ هغه ښځه نهٔ یم ما تا ته اول وئیلی دی چې ما خریزکی تول کړی دی. ډوډۍ مې تولې کړې دی. په خوشو پټو کښې مې په شنه زمکه شپې سبا کړې دی. نیم ژوند مې په غرونو او نیم مې په سمونو تېر کړے دے. ستا به دا خیال وی چې اجړه یو شپونکۍ ناپوهه جینۍ ده خو زهٔ هغه نهٔ یم ستاسو غوندې کلی والې ښځې خو زهٔ په ډېران غولو ته کښېنوم. اورې کنهٔ. په کولاؤ غوړونو واوره. دغې زوی ته دې اووایه چې زهٔ ئې وادهٔ کړې یم هم زهٔ به ئې ښځه یم. بل هیچرته نهٔ شی تلے او کهٔ چرې زما د مرضۍ نه ئې خلاف کار وکړو نو پښې مې ازادې دی. د خدائے دنیا لویه ده او ما هر څهٔ لیدلی او معلوم کړی دی. زهٔ د چا څهٔ پروا ساتم. کوم څیز چې تاسو خپل عزت ګڼۍ او پرې خفه کېږی هم چې د چا ښځه دې د کور نه بهر نهٔ اوځی. دغه زهٔ خپل عادت ګڼم او هډو پرېږدمه ئې نهٔ.

مصری جان: تهٔ خو د مرچکو په څټه ناسته ئې. لا ورځ دې نهٔ ده شوې او داسې په ترخو ترخو اونختلې چې نااشنا ستا مجال څهٔ دے چې چرته به لاړه شې. د خانانو کلے دے خلق به دې پښې پرېکړی.

اجړه: (مسنکۍ غونډې شوه) ترور تهٔ د زړې زمانې خبرې کوې. اوس هغه وخت چرته دے. خانان اوس پښې چرته پرېکولے شي. او ما څوك بندولے شي. تا دا پېغور اوکړو چې په اوله ورځ په ترخو ترخو اونختلې. ستا زوی تادی کړې ده کوم څيز چې په تادۍ حاصل شي انجام ئې زر را اوځي. هغهٔ زهٔ خپل منزل رسېدو ته هم پرې نهٔ خودم چې سپين سر ته خو تلے وے. هلته به مې خپل خپلوان ليدلی وو. همزولې جينکۍ به مې ليدلې وې. اوس چې هغه خبر شي نو حېران به شي. بلکې يقين به ئې نهٔ اخلی خو د خشاکی او زما د پلار نه به دا تپوس کوی چې اجړه مو چرته خرڅه کړه. کوم ځائے مړه شوه. تهٔ اووايه ترور داسې وادهٔ چرته چا کړے دے او بيا دا رنګ چې د سړی دې خپل کور هم نهٔ وی دا د پېغور او د قهر خبره نهٔ ده نو د څهٔ ده؟

مصری جان: بچۍ ښهٔ وے ښهٔ. ستا سره په سر نهٔ لګی هغهٔ ته د کور څهٔ ضرورت دے. خو پلار ئې خفه دے هغه وې چې دا جينۍ به بالکل نهٔ وادهٔ کوې. او شوکت په خپله خبره کلك وو. نو پلار ئې پرې دا شرط کښېښودو چې خامخا زړهٔ نهٔ شې صبرولے نو جدا کورته به ځې دا کور د پشمينې دے نهٔ چې د نوکر دے.

اجړه: پشمينه څوك پشمينه هغه جينۍ بېګاه چې ئې ماته بد بد کتل.

**مصري جان:** او او. هغه جینۍ ډېره ښائسته جینۍ ده هوښیاره ده د ښځ مور و پلار پېدا ده. دا د شوکت ښځه ده خو لا وادۀ ئې نۀ دے شوے.

**اجړه:** وئ. د شوکت ښځه ده خو لا وادۀ ئې نۀ دے شوے. په سوچ شوه او زر ئې په خپلو حالاتو قابو راوستلو او وې خندل او مصري جان ته ئې اووې.

ترور دا خو ډېر بد اوشو چې تا زۀ بېګاه.خبر کړے وے نو ما به ورته سلام کړے وۀ. هغه خو زما خور ده د خان ښځه ده ماته ډېره ګرانه ده او واقعی ډېره ښائسته ده. ډېر ښۀ خوئ یې دے او بیا د خان خپله به هم وی کنۀ. ښه ده چائے تیار دے راکړه چې ګوټ ئې کړو.

دواړو چائے اوڅښلو نمر څیره وکړه اجړه کټ ته اوختله او کښېناسته.

**مصري جان:** تۀ خو کټ ته اوختې څۀ مېلمنه خو نۀ ئې. دا اوس ستا د عمر کور دے. دا تپوس خو اوکړه کنۀ چې شوکت راشی نو خوری به څۀ.

**اجړه:** زما څۀ کار دے چې څۀ خوری هغه به خوری کنۀ زمونږ خو دا عادت نۀ دے چې سړو له ډوډۍ کور پخوو هر سړے ځان له ځان له ګوری. مونږ چې د ګډو بېزو سره ځو نو سړی ځان له په یو پلۀ کښې ډوډۍ اوغواړی او اوخوری او مونږ ځان له چرته د بل چا نه اوغواړو. اوس خو زۀ یواځې

یم کۀ تاسو ډوډۍ نۀ شوه راکولے نو دلته به ځان له په چم ګاوند کښې اوغوارم.

مصری جان: خلۀ بنده کړه دا چرته د بل چا په مخکښې اونۀ وائې د خان ښځه او خبر تولول.

اجړه: چې د خان ښځه خبرات نۀ تولوی نو د خان ښځه په خپله کار کوی څۀ. ما خو اوربدلی دی چې د خانانو ښځې په کتونو کښې ناستې وی او مزدورانې ورله کار کوی دا څۀ رنګ خان دے چې نۀ مزدوره شته او نۀ نوکر کۀ زۀ خبر وے نو هسې به مې ځان دې زندان ته نۀ وۀ اچولے.

مصری جان: دا زندان نۀ دے اجړې جنت دے جنت. خو دا ستا خبرې غلطې دی. تۀ هغې کور ته لاړه شه چې اووینې هلته تولې بیبیانې په خپله کار کوی. پشمینه او کلثوم سحر وختې پاسی او د چائے پخولو کار کوی. د هغې نه څۀ لږ وخت روستو. چاتنور لګولے وی او خوك اینګولی پخوی.

اجړه: هغې کور ته خنګه لاړه شم هلته ما خوك پربږدی (او دې سره ژړغونې شی) زۀ خو تاسو ته بده ښکاربږم د هر چا د سترګو ازغے یم. هر چاته داسې ښکاربږم لکه لیونۍ. هر سړے رانه ځان داسې ساتی لکه چې مرګ مې تربنه کړے وی او یا ئې مرګ له راغلې یم. پشمینه به د خانۍ په کور کښې اوسی. او زۀ به د نوکر،

ترور بی بی تهٔ اووایه چې زهٔ به هم هلته درځم او یا به شوکت ته اووایم چې کوم ځائے هغه سبق وائی. هلته د هغهٔ کور دے. هلته به دواړه لاړ شو چې ستاسو د سترګو نه پناه شو. ځکه چې هسې هم ستاسو په سترګو کښې نهٔ غړېږم.

مصری جان اوس هم هر څهٔ واورېدل او بېګاه ئې هم اورېدلی وو. هوښیاره ښځه وه. د اجړې په خوئ خصلت پوهه شوه. چې کمزورې ښځه نهٔ ده نو زر ئې اووې.

مصری جان: ښه ده تهٔ چائے اوڅښه. زهٔ ځم چې هلته نه د خوراك سخاك څهٔ راوړم. تهٔ کښېنه خو دروازه بنده ساته. او کچرې چا غږ اوکړو نو واپس اواز به نهٔ کوې دلته بیبیانې پردو سړو ته واپس دروازې پله غږونه نهٔ کوی زهٔ به اوس زر راشم.

اجړه: ښه ده ترور خو زر راځه هسې نهٔ چې څوك اواز اوکړی او زهٔ واپس غږ نهٔ شم کولے او څوك سر را دننه کړی. داسې یرېږم چې نااشنا.

مصری جان: پرواه مهٔ کوه دلته خو مرغۍ نهٔ شی الوتلے. د چا مجال څهٔ دے چې سر به رادننه کړی. او ننداره اوکړی.

اجړه: تهٔ اوس دا خبرې پرېږده. ځه کورته لاړه شه او خان ښهٔ پوهه کړه خو دا اونهٔ وے چرته چې خان بېګا شپه بهر کړې ده.

مصری جان راغله ساه نیولې غوندې وه. سره د راتلو

کلثوم، پشمينې او ر مور ئې پرې د تپوسونو باران جوړ کړو.

پشمينه : ترور څنګه اجړه ډېره ښائسته ده کنهٔ. بېګاه به خان ډېر خوشحاله وۀ.

کلثوم: شوکت خو هډو چائيو له رانغے چائے چا پوخ کړو.

مور: مصری جان شوکت څهٔ وخت وتلے وۀ.

مصری جان: تاسو په يو ځائے دومره تپوسونه اوکړل چې جواب ئې ګران دے. راځئ کښېنئ د لږ وخت د پاره راغلې يم چې څهٔ وی هغه ټول به واورئ.

مور: څنګه ولې څهٔ دی خبر خو دے کنهٔ.

کلثوم: ترور ولې څهٔ چل شوے دے څهٔ؟

پشمينه: خدائے دې خبر کړی زما زړهٔ خو بېګاه نړېدلے وۀ.

مصری جان بېګاه د شپې نه سحره پورې ټوله قيصه يو په يو بيان کړه. چې داسې ناکاره جينى ده چې نور پرې نهٔ کېږی. خان سره د ماسختن وتلے وۀ. ټوله شپه يې ورسره په دې جنګ اوکړو چې تهٔ د نوکر په کوټه کښې ناست ئې. بيا ورته هغهٔ اووې چې زهٔ به سحر د خپل پلار سره خبره اوکړم. کهٔ چرې اونهٔ شوه نو بيا به د کالج کواټر ته د اوسيدو د پاره لاړ شو. او اجړې ورته هم دا اووې چې هغه ځائے مونږ له ښهٔ دے.

مور: نو بیا څۀ اوشو نور ئې څۀ اووې.

کلثوم: ابې تۀ لږ خبرې ته غوږ کېږده چې ترور خبره اوکړی.

مصری جان: سحر وختی پاسېدلې ده او پۀ کټ کښې ناسته ده. چائې مې ورله پوخ کړو. او ورته مې اووې چې دا دې اوس کور دے خان چې د کالج نه راځی نو دلته به راځی ډوډی ورله تیاره ساته مېز به ورته کېږدې لاس لونے به ورته اونیسې اوبۀ به ورته واچوې او ډوډی به ورته پۀ مېز کېږدې. بیا به ګلاس پۀ لاس اودرېږې. چې څۀ وخت هغه اوبۀ غواړی نو وربه ئې کړې. د دې خبرې سره سره ئې راته داسې بدبد اوکتل ما وې جوړې لنډی ده. ګزار ئې راباندې اوکړو. او داسې ئې اووئیل چې ښه دا زۀ چرته مزدوری له راغلې یم څۀ. ازاده ښځه یم ازاده. ما خریزکی تهول کړی دی. د خیرات نمړی مې خوړلې ده. دا لاس لونی نۀ شم ګرځولے او نۀ هغۀ ته صبر کولے شم. هغه به مازیګر راځی نو زۀ به نهره ناسته یم. زۀ خو به خورم او تۀ ورله ساته. زړۀ مې ډوبېږی. خدائے دې خبر کړې چې څۀ به کېږی. د جینی اوسان بل شان دی. داسې نۀ ده لکه وادۀ کړې جینی خو لکه پۀ چا پسې چې متېزه راغلې وی.

د پښمینې د سترګو نه اوښکې روانې شوې او غریب اونیوله.

کلثوم: اوس به څۀ چل کېږی دا خو د خاندان شرم دے شرم.

مور: دا څۀ د تادی خبره نۀ ده اوس هر څۀ په حالاتو منحصر دی. وخت ته صبر پکار دے.

پشمینه: ما درته نۀ وو وئیلی کلثوم. خو تا د شپون نوم په ما راپورې کړو او زما په خلۀ کښې دې خبره اوچه کړه.

کلثوم: پرونی خبره پرېږده اوس څۀ چل اوکړو.

مور: زۀ خو هډو په چل ول نۀ پوهېږم.

پشمینه: زما خو دا خیال دے چې اجړه دلته راولو. هر څۀ چې کېږی خدمت به ورله مونږه کوو. کلثوم تۀ خور ئې ابۍ مور ده او زۀ ښځه یم. خو زمونږ خاندانی ونه شریکه ده هسې نۀ چې د خاندان عزت ته څۀ نقصان اورسی. زما دا خبره بالکل بده مۀ ګڼه.

کلثوم: ولې اجړه به دلته راشی څۀ.

مور: او او په پټو سترګو به راځی.

مصری جان: ضرور به راځی.

پشمینه: دا یوه خبره ده چې یقین مې راځی. ځکه چې د اجړې سترګې چې بېګاه ما لیدلې دی نو د هغې نه دا پته لګی چې دا څۀ په بل رنګ راغلې ده. خو خېر کوشش به کوو چې هغه دلته راشی.

مصری جان ترور د خوراك څښاك سامان واخستلو
او لاړه چې دروازه کښې پناه شوه خو د شوکت مور ورته
اووې.

مور: مصری جان ډېر ناکام کوه پردۍ جینۍ ده
هیڅ پته ئې نۀ لګی.

کلثوم: ترور زۀ به هم څۀ وخت درشم. تاله یواځې
هلته او سېدل ښۀ نۀ دی.

پشمینه: هیڅ پروامۀ کوه. زۀ به نن بابا ته اووایم هغه
زما خبره منی او اجړه به ضرور دلته راشی. اجړې دلته راتلل
ضروری دی.

مصری جان: تاسو زما نه ښۀ پوهه یئ خپل خپل فکر
اوزغلوئ چې څنګه مو خوښه وه هغه به کوو. زۀ به ستاسو د
خبرې نه د خبرېدو پورې د هغې سره هیڅ خبره نۀ کوم او
شوکت به هم راشی خو خدائے دې خېر کړی. هسې نۀ چې نن
هغه هلته د کالج هغه کواټر خوشے کړے وی او کله ورله
یوسی.

پشمینه: اسوېلے اوکړی.

او نو کۀ داسې اوشوه نو دا به ډېره بده اوشی. خدائے
دې داسې اونۀ کړی. خان به دا ډېر غلطی اوکړی. افسوس
چې ما ورسره خبرې کولے شوے. کلثوم ته ئې پوهه کړه. غږ
ورته اوکړه.

کلثوم: تهٔ وار مهٔ خطا کوه. دا نهٔ شی کېدے هوښیار سړے دے. ولې به داسې کوی. یو ګوجره ښځه هغه داسې خوشی ځائے ته نهٔ شی بوتلے

د دې سره دوئ په خپلو خپلو ځایونو خفه کښېناستې. او هر څوك په سوچ شول چې څهٔ به کېږی.

# ګواړتو

ټوله شپه شوکت په دې تصور کښې تېره کړه چې دا څۀ اوشو. هره مرضي خو په پلار نۀ شم منلے. د هغۀ هم حق دے. د دې نه زياته قرباني هغه کوے شوه ما د محبت اول اقرار اوکړو او هغۀ زما د مرضۍ د پاره يو شپونکۍ جينۍ د خاندان د رواجونو نه خلاف په دوه ورځو کښې وادۀ کړه ماته. ليکن دا به ورته څنګه اووايم چې اجړه دې دلته راشي پشمينه هم ناکاره ښځه نۀ ده. زما د خور تړۀ لور ده په ما ډېره مئينه. د مور او خور مې ډېر خيال ساتي. زما د پلار يکه يوه ورېره. او بيا مړ ترۀ مې دا وصيت هم کړے وۀ. چې زما لور به شوکت ودوي او بيا د پښتنو په رواج کښې دا هم ګرانه ده چې غوښتلې ښځه پرېږدم. او کۀ چرې د پشمينې سره وادۀ اوکړم نو اجړه به څۀ اوکړي. واقعي جذبات او هلکوالے ښۀ څيز نۀ دے. د مشرانو خبرې حقې وي. اوس به څۀ کېږي څۀ اوکړم. ماله څۀ کول پکار دي دلدار هم نن رانغے.

په دې سوچ کښې ډوب شوکت د کالج کپړې بدلې

کړي. سوټ ئې واغوستلو. خپل بېګ ئې تر لاسه کړو او روان شو. ناګهانه ئې په دلدار سترګې اولګېدې.

شوکت: اوهو. دلداره تهٔ خو راغلے ئې زما خو دا خیال وهٔ چې زهٔ دې هېر کړم.

دلدار: زهٔ خو ډېر وختې راغلے ووم خو شائد تهٔ د خپل ډریسنګ سنګار نه اوزګار نهٔ وې. نوې شپه دې مبارك شه. نوے وادهٔ دې پخېر شه. اجړه درته غوړه شه. شپه څهٔ رنګ تېره شوه. ارزو دې پوره شوه. تهٔ نور د خدایه څهٔ غواړې.

د دې خبرې سره شوکت مرې اوچه شوه ویښتهٔ ئې زارهٔ بارهٔ اودربدل. وار ئې خطا شو او ځوړند سر ئې یو سوړ اسویلے اوکړو او وې وئیل.

شوکت: دلداره د تقدیر چارې څوك بدلولے نهٔ شی. څهٔ غلط رواجونه شو. څهٔ د تقدیر فیصلې څهٔ جذبات او تادی. د دې هر څهٔ نه یو داسې خړ سېلاب جوړ شو چې اوس خو زما د وارخطایۍ څه حد نشته. زما په زړهٔ کښې راځی چې په یو داسې خړ سېلاب لاهو شوم چې راخېژم به څنګه؟.

دلدار: اهو. په یوه شپه په خړسېلاب ورګډ شوې. مینه خو ډېر اسان کار دے. ستا هېر شول هغه بله ورځ دې وئیل چې وادهٔ د مرضۍ څیز دے. مینه د خوښې شے دے. ښځه د طبیعت څیز دے. اوس هغه ښځه مینه طبیعت او

خوښه خړ سېلاب شو. او ته پکښې لاهو شوې. حوصله اوکړه زړۀ ټینګ کړه. اوس هم تاله په ژوند کښې ډېر څۀ کول دی.

شوکت: پوهه یم، پوهه شوم خو په دې هر څۀ قابو راوستل یواځې زما د وس کار نۀ دے. یو ښۀ دوست او مددګار راله پکار دے.

**دلدار:** حکم کوه هر څۀ حاضر دی. سوا د دې نه چې د خان بابا سره خبره کول مناسب نۀ دی. ځکه چې دا شوې خبره مونږ. په هغۀ په زور ځائے کړې ده. هر سړی ته خپل عزت خوږ دے. زما پلار ئې هم ډېر رټلے دے او زۀ خو ئې هډو په سترګو نه لګم. نو روزانه مخامخ کېدے نۀ شم. اوس چې څۀ کېږی ستا په خپل سر دی. پاتې د لاسو د پښو خدمت شو نو مونږ. به انشاء الله پلار او ځوے هر وخت حاضر یو.

**شوکت:** دلداره مسئله اوس د لاسو پښو د خدمت نۀ ده.

**دلدار:** نو بیا څۀ دی او څۀ ضرورت دے.

**شوکت:** ستا خو به دا خیال وی چې بېګاه شپه به شوکت د اجړې سره د مینې په ډك كټ كښې تېره كړې وی. د هغې ښکلې سترګې او پرېکړی څونډی به ئې په لاسو کښې اړولی او راړولی وی لیکن دا هیڅ هم نۀ دی شوی.

دلدار: نو بیا څۀ شوی دی؟ تاله ناکام پکار وو څۀ اوشو؟

شوکت: هغه څۀ شوی دی چې د څۀ د کېدو خطره ما او زما پلار محسوس کوله.

دلدار: پوهه نۀ شوم د څۀ خطره او ولې محسوس کېده.

شوکت: اجړه کورته لکه د ناوې نۀ بلکې لکه د یوې زړې پوهې ښځې راغلې ده. په هر څۀ ئې نظر دے. زما خو دا خیال وۀ چې یوه ساده شپونکۍ جینۍ ده. مینه به پېژنی او خپل خاوند. خو لکه څرنګه چې اول وه نو اوس د هغې بالکل مختلف ده. ښۀ چالاکه او جهان دیده پېغله ده. د کور په ګوټ ګوټ ئې نظر وۀ.

دلدار: ما خو درته اول وئیلی وو چې د دې په خبرو کښې چالاکی او هنر دے. خو مینې ستا سترګې داسې پټې کړې وې چې هډو منله دې نۀ. کنۀ دا څنګه کېدے شی چې یوه پېغله اوړے په سپین سر کښې تېروی او ژمی کښې سمې او هشتنغر له ځی. په لاره وتلې او تېرې کړې شپې ورځې. په کلی کښې ګرځېدونکې جینۍ خیرات ټول کړے وی او دا دې په هیڅ نۀ پوهېږی.

شوکت: بس که دلداره نور څۀ مۀ وایه. دا څۀ چې دې اووې دا پوره دی. هم دې واقعاتو راباندې شپه روڼ کړې

ده وئيل چې دا خو د خان سړی کور نۀ دے. ما د ډېرو خانانو کورونه ليدلی دی. ډوډۍ مې ترېنه پلار له او د کډې نورو کسانو له وړې دی. دا خو لکه د خان د نوکر کور دے. يا خو شوکته تۀ د خان زوے نۀ ئې. او يا دا کور د خان نۀ دے بلکې د يو نوکر دے. زۀ دلته نۀ اوسېږم. يا خو به هغې کورته ځم چرته چې پشمينه کلثوم او ستا مور ده او يا به پخپلې کډې پسې ځم. خپلې ګډې بيزې به څروم. حېران يم. اوس به څۀ کېږی او هم داسې پۀ شر شدت د کورنه راوتلے يم. شپه مې دلته تېره کړه. اوس خدائے خبر چې مخکښې به څۀ کېږی.

دلدار: د وارخطايۍ خبره نۀ ده څۀ چې کېدل هغه شوی دی. اول سوچ پکار وی. خلق متل کوی. چې بتې خورې نو مولی به زغمے. هم هغه شانې طريقه اوشوه اوس دې د څۀ کولو اراده ده؟

شوکت: په کالج کښې د پروفيسرانو د پاره کواټرې ورکوی خيال مې دا دے چې نن د پرنسپل صېب نه د کوارټر مطالبه اوکړم.او اجره د ځان سره هلته بوځم. دلته د نوکر په کور کښې هغه نۀ اوسېږی او د خانۍ په کور کښې ئې زما پلار نۀ پرېږدی. اوس د کوارټر نه سېوا نور څۀ کېږی.

دلدار: بيا هم ښۀ سوچ اوکړه کنۀ. هسې نۀ چې څۀ

داسې بله ډنډه جوړه شي چې دوباره بيا حېران او درمانه ئې او وچولے ئې نۀ شي.

شوکت: اوبۀ د سرنه اوړېدلی دی دلداره. څۀ چې کېدۀ هغه شوی دی. اوس خو لکه د ګنهګار سړی د خپل بچاؤ د پاره او د جرم د پټولو د پاره د غلطۍ د پاسه غلطی کول دی. نور هيڅ نشته.

د دې خبرې سره شوکت لار اونيوله او روان شو. په سټاف بس ته اوختلو او څۀ لږ وخت پس د کالج د سړك په خوا کښې کوز شو کالج ته وراغے او د خپل ډيپارټمنټ لار ئې اونيوله څوك نۀ وو ډيپارټمينټ خوشے وۀ. د ے کرسۍ ته کښېناستو او کاغذ ئې تر لاسه کړو چې پرنسپل صېب ته د کوارټر په باره کښې درخواست اوليکی. په دې کښې د چا د راتلو اواز راغے د ے غلے غوندې شو. ګوری چې څوك د ے. ناڅاپی حليم صېب رادننه شو.

حليم: السلام عليکم شوکته زما خو دا خيال وۀ چې نن به نۀ ئې راغلے.

شوکت: څۀ کار نۀ وۀ نو ولې به نۀ راتلم.

خليم: يو تپوس کولے شم کۀ خفه کېږې نۀ.

شوکت: حليم صېب د خفګان څۀ دی. ډېر خلق به راپورې خاندی او بيا ستا خبرې خو ماته لکه د يو همدرد رور ښکارېږی کله چې تۀ کالج ته رانۀ شې. زۀ خپل ځان

نیمګړے محسوسوم او زړهٔ مې غواړی چې د دې خبرې ستا نه مشوره واخلم خو افسوس چې......

حلیم: او نو ډېر خلق داسې وی چې مشوره اخستل غواړی خو اخلی نهٔ. ما تپوس هم د دې خبرې کولو چې اخر ولې تا داسې اوکړل.

شوکت: ماته وائې څهٔ مې اوکړل؟

دا تهٔ څهٔ وائې یار

حلیم: ماله دوکه مهٔ راکوه پرون د ټولې واقعې نه خبر شوے یم. ګوته په خلهٔ حېران اودرېدم چې دا څنګه کېدے شی چې یو تعلیم یافته زلمے د خان ځوے او دیوې شپونکۍ سره وادهٔ او دومره اچانك چې د سوچ موقع هم نهٔ. خو مازیګر ئې خوښه کړه او سحر ئې وادهٔ کړه. اخر د خپلو یارانو دوستانو سره مشوره هم ضروری وه کنهٔ ډېر بد دې کړی دی. خو خبر چې څهٔ شوی دی هسې هم شوی دی. ستا د شکل نه دا تاثر په ډاګه ښکارېږی چې تهٔ ستومانه ئې او څهٔ ذهنی پرېشانی درته هم ده. خو اوس وار مهٔ خطا کوه. د حالاتو مقابله کوه. د دې نه علاوه بله هیڅ چاره نشته.

شوکت: حلیمه وروره ټولې دې زما د زړهٔ خبرې اوکړې دومره تسلی مې اوشوه کنهٔ زما خو دا خیال وهٔ چې نن به سم لېونے شم. ستا نه څهٔ پرده په پټه مې جینۍ خوښه کړه. د پلار د مرضۍ خلاف مې خپل مند اونیولو او وادهٔ

مې اوکړو. ملا نکاح اوتړلو. د شپې د کور نه وتلے یم. د تلو
او په شر شدت او مارېزو سر شوے یم.
حلیم. اخر په اوله شپه د شرشدت ته کوم حاجت وۀ.
شوکت: زما خو دا خیال وۀ چې اجړه یوه ناپوهه ساده
جینۍ ده. محبت به ئې پاك او مینه رشتینې وی. خو هغه
بالکل د دې نه برعکس ده. اوله شپه ئې په کور اعتراض
اوکړو چې ستا مور، پلار او خور به د خانۍ په کور کښې
اوسېږی او تۀ به د نوکر په کور کښې چې زۀ درته بده
ښکارېدم نو وادۀ دې راسره څۀ له کولو. او کچرې زما د
شپونکیوالۍ په وجه تۀ شپونکے کېږې نو کورته هیڅ
حاجت نشته خو زما سره روان شه. او د سپین سر په گټانو
کښې سپلونه وکړه. په دوه کښې حېران ووم چې اجړه هم ښه
ده کۀ چرې زما په نوم دا د خان ښځه او انگور کېدے نۀ
شی. نو زۀ خو دې د مینې په نوم شپونکے شم کنۀ.
حلیم: دا ټول هسې تش خیالونه دی شوکته. دا د
خطرې خبرې تۀ کوې زما خو سوچ پېدا شو.
شوکت: هغه څنگه؟
حلیم: د کالج کوارټر نمبر 12 خالی پروت دے.
ښکلے چمن ښه بنگله د اوبو او بجلۍ پکښې بهترین نظام
دے. نن ئې قبضه کړه او نوې ښځه دې دې کورته راوله. او
ورته دا بهانه جوړه کړه چې پروفېسران چې وادۀ اوکړی خو.

هغه د کالج د کالونۍ نه بهر نۀ شي اوسېدے. او دا رنګه به ستا دوه مسئلې حل شي. يو خو دا چې پلار په دې مطمئن شي. او بله دا چې اجړه به خوشحاله شي. د هغې د ذهن نه به دا لرې شي چې خانان زما نه نفرت کوي. او هغه به دا په خپله اووائي چې زۀ د يو خان نۀ بلکې د يو زلمي پروفېسر ښځه يمه.

شوکت: ژوندے اوسې حليم صېب زۀ هم د ډېر وخت راسې ستا د ښکلې رائې په انتظار ووم. ما خو کاغذ تر ګوتو کړے وۀ چې درخواست اولیکم. خو درخواست ته ضرورت نشته. ځم ټيکسی به بوځم او کډه به را اوچته کړم.

حليم: بس تۀ ځه او زۀ به د کوارټر صفائی اوکړم پۀ مخه دې ښه زر راځه.

شوکت سحر بيا د کالج نه روان شو. يو ټيکسی ئې بک کړو. د سړک په غاړه کښې ئې اودرولو. او ورته ئې اووې چې تۀ دلته د سړک په غاړه اودرېږه. او زۀ ورځم چې سامان اوتړو نو کډه به وړو.

شوکت د خپل حجرې مخه اونيوه. واکدار ناست دے.

واکدار: شوکته ولې تۀ کالج ته نۀ وې تلے څۀ؟

شوکت: ما ما تلے ووم خو واپس راغلم.

واکدار: دا نن سبا زلمي ډېر بې شرمه دي چې واده

اوکړی نو بیا کلے نۀ خوشے کوی. کنه تۀ سحر کالج ته تلے وې نو په دې ساعت کښې بیا راغلې.

شوکت: نه ماما دا خبره نۀ ده خو بابا څۀ شو چرته تلے دے کۀ؟

واکدار: دا خبره نۀ ده نو بیا څۀ دی. خان هیچرته نۀ دے تلے البته د ډېره غمه په کور کښې پروت دے نن هډو حجرې ته راوتلے نۀ دے. خدائے دې خېر کړی چې طبیعت ئې خراب دے کۀ. ولې ستا ورسره څۀ کار دے څۀ.

شوکت زر کورته راغے. کلثوم، پشمینه او مور ئې زر خواله راغلې. مور شوکت په دواړه مخه ښکل کړو. خور ئې لاس ښکل کړو او پشمینې هسې د حیا ډك سلام اوکړو.

مور: خېر دے بچیه. ځنګه راغلې؟ چا خو وې دے کالج ته تلے دے.

کلثوم: لالاجی چا وې چې دۀ چائے نۀ دے څښلے.

شوکت: هر څۀ مې کړی دی چائے مې څښلی ده کالج ته تلے ووم بیا راغلم اوس بیا ځم. خو ......خو.

کلثوم: خو... خو... د دې خبرې څۀ حاجت دے لالاجی په ډاګه خبره کوه چې څۀ دې په زړۀ دی هغه اووایه. نور درته هم څۀ پاتې دی چې د خاندان د عزت په سر سودا اوکړې. بابا بېګاه شیبرې تبې نیولے پروت دے. ابۍ ډوډۍ نۀ ده خوړلې او د پشمینې خو په ژړا ژړا سترګې سرې

شوي.

شوکت: بس که کلثوم بسکه. نور مې طبیعت مهٔ خرابوه هزار ځله مې درته وئیلي دي چې څهٔ کېدل هغه اوشو اوس تاسو ټول په دې غم کښې زما سره شریك یئ. کهٔ چرې څهٔ ماتم په ما خپلې وي او څهٔ راباندې تاسو جوړ کړو نو د حیا په ځائے به لېونے شم. تاسو دا غواړئ چې زهٔ دې لېونے شم او وایه پشمینې تهٔ غواړې چې زهٔ دې لېونے شم.

دشوکت په مخ د اوښکو ولې راروانې شوې.

پشمینه داسې غریب نیولې وه چې مرې ئې اوچه دړه وه. شونډې ئې رپېدې او په رپېدونکی اواز ئې اووې.

پشمینه: قسم مې دې په هغه ذات وي چې ټوله دنیا ئې پېدا کړې ده. ما واقعي چې خپل مور، پلار نهٔ دي لیدلی خو ستا مور، پلار راله دغه سهاره راکړې ده. کلثوم راته د خور والې ژوند راکړے دے او ما هم د خدائے سره دا وعده کړې ده چې د دوې د دې احسان په بدله کښې به ځان ستا د پاره وقف کړم. څهٔ چې دې په زړهٔ دي هغه اووایه. زهٔ به نن بیا د بابا پښو ته لاس کړم. د خپلې حیا څادر به د هغهٔ په قدمونو کښې اوغورزوم کهٔ چرې تهٔ دې وینا له راغلے ئې چې اجړه وائي چې تهٔ د پشمینې سره وادهٔ مهٔ کوه. نو ښهٔ په خوشحالۍ زهٔ دې خبرې ته تیاره یم. زهٔ د ستا او د اجړې د محبت په مینځ کښې نهٔ اودرېږم شوکته. دا نهٔ چې

ستا د لارې نه د لرې کېدو د پاره یا ځان مړ کړم او یا کور پرېږدم نا... دا هم د خاندان بې عزتي ده. خو په حیثیت د یوې پښتنې پېغلې به دا اووایم چې زما خاوند مړ دے. زهٔ د خپل مړ خاوند کره کونتون کوم. دا هر څهٔ رشتیا دی شوکته. دو که نهٔ ده زهٔ پښتنه یم. دا مې ایمان دے ستا د پلار عزت او ستا غېرت زهٔ خپل عزت او خپل غېرت گڼم. اوس اووایه زړهٔ دې څهٔ غواړي چې هغه اوکړم.

شوکت غریب نبولے وۂ او د غریب پهٔ ډك اواز کښې یې اووې چې.

شوکت: پشمینې ستا طرف ته مې د ډېرې حیا نه سر نهٔ اوچتېږی. واقعی خلق متل کوی چې خاوره اخلې نو د لوئے ډېران نه اخله. ستا دا صدمه او قربانی په ما دومره لوئے احسان دے چې خدائے شته خو چې دا نن څهٔ کېدونکې دی دا تهٔ نهٔ شې کولے.

پشمینه: هر څهٔ چې دی دا بهٔ زهٔ کوم تهٔ صرف حکم کوه.

شوکت: ما د کالج په کالونۍ کښې کوارټر خالی کړے دے زهٔ اجره هلته بوځم. او د دې ځائے نه په کډه ځم ځکه چې اجرې بېگاه ماته په ډاگه وئیلی دی چې یا به زهٔ د خانۍ په کور کښې اووسم او یا به تهٔ زما سره د شپونکی توب ژوند تېر وې. زما دا یقین دے چې تاسو به ما

شپونکی جوړېدو ته نۀ پرېږدی. خو بابا راته په ډاګه وئیلی دی چې زما په دې ژوندانۀ به اجړه دې کورته نۀ راځی. او اجړه د نوکر په کور کښې نۀ کښېنی. اوس د هغې علاج صرف او صرف دا دے چې اجړه زۀ د کالج لوئے کالونی ته بوځم. ستا سو څۀ خیال دے. او زما تر کومه حده مدد کولے شئ.

پشمینه: دا خو ډېره اسانه خبره ده تۀ هر وخت تلے شې.

کلثوم: دا چرته نۀ شی کېدے اجړه ګوجره ښځه ده په هغې څۀ اعتبار د کولو دے هسې چې لالاجی تۀ چرته....

مور: او کنۀ بچیه تۀ به یو اځې هلته څۀ کوې؟

شوکت: هم دا خو مسئله ده کنۀ. زما سره یو تنه ستاسو نه پکار ده هغه څوك کېدے شی.

مور: زۀ خو تلے نۀ شم پلار به دې څۀ وائی.

کلثوم: لالاجی کۀ ما ته حکم کوې نو....

پشمینه: ستاسو د دواړو حق نۀ دے د دوئ سره به زۀ ځم. اجړه د دۀ ښځه ده او زۀ ئې د تره لور یم. د خاوند والی طمعه ترې نۀ کوم. اجړه ما پېژندلې ده. زۀ به ورسره ځم او ضرور به ځم.

شوکت: ښنګه به ځې زۀ به اجړې ته څۀ اووایم چې دا څوك ده.

کلثوم: تۀ به وے چې دا زما ښځه ده اجړې د

شپونکۍ لور ته ګوره او تهٔ به د هغې په مخکښې دا هم نهٔ وائې چې دا څوك ده تاته ګوره هسې د خوده وتلے ئې. مينې دومره لېونے کړې چې اوس دې په پشمينې پښې کېښودلې.

پشمينه: تهٔ چپ شه کلثوم د هغهٔ زړهٔ هسې هم نرے شوے دے. په بدو ستومانه دے. زهٔ به دا اووايم چې خان زما د ترهٔ زوئے دے او زهٔ دهٔ سره کار روزګار له راغلې يم.

شوکت: پشمينې تهٔ خو فرشته ئې فرشته زما دې سترګې ړندې شی چې اجره ئې ليده. زما زړهٔ دې اوچوی چې اجره ئې خوښوله. زما خلهٔ دې ماته شی او ژبه دې خاورې شی چې اجرې سره ئې د وادهٔ اقرار کړے وهٔ. ما ته بخښنه اوکړه پشمينې ماته بخښنه اوکړه.

پشمينه: پروا اونهٔ کړې لاس چې مات شی نو غاړې له ځی. خانه زهٔ ستا د ترهٔ لور يم. پهٔ دې کور کښې لويه شوې يم ما د پښتونوالی وعده کړې ده. په خدائے مې يقين دے چې زمونږ دا مشکل به ضرور حل کېږی. څه چې څو....

په ژوند کښې په دوئم ځل حيا دارې پېغلې او پښتنې د حيا پړونے په سر کړو. خپله لتهه غوټه ئې اوتړله. شوکت هم د هغه کوره کټ بس ګلاس منګے. سمسی کټوی او نور سامانونه اوتړل. په ټيکسی کښې ئې واچول او څهٔ لږ وخت وروستو سره د مصری جان او د خوږ دوست دلدار سره د کالج په لوئې کالونۍ کښې کوز شول. دوئ کورته

اورسېدل کېږه ئې ځائے ځائے کړه. اجړې په کور کښې لاڅو قدمونه ایښې نهٔ وو چې د کور په ګوټ ګوټ ئې نظر وزغلولو او پشمینې ته ئې اووې.

اجړه: اوس دا کور دے کنهٔ هغه څهٔ چارقوتې وه زهٔ ازاده پرنده ښځه د بنونو او غرونو عادت په هغه کور کښې چرته اوسېدے شوم. د لوګو ډک، په بد حل، په بده نرۍ، په هغې کښې زما نه اوسېدل نهٔ شو کېدلے. دلته جنتونه دی. سړکونه دی. هوټلونه دی، بازار نزدې دے. سودا په اسانه راوړلے کېږی. کهٔ سړے ګرځی راګرځی نو ساه خو به ئې ازاده بږی کنهٔ. پشمینې تهٔ ولې نهٔ وے.

پشمینه: تهٔ ما څهٔ پېژنې چې زما نوم پشمینه دے.

اجړه: ستا څهٔ خیال دے چې زهٔ شپونکۍ پهٔ هیڅ نهٔ پوهېږم تهٔ د شوکت د مړهٔ تړهٔ لور ئې. د شوکت غوښتلې ښځه ئې. زهٔ ښهٔ خبر یم خا. اوس سامان په طریقه کېږدو نورې خبرې به بیا کوو. ځان بدلوه مهٔ کهٔ ته هوښیاره ئې نو زهٔ هم څهٔ کمه نهٔ یم. خوشحاله شې. هله شابه سامان ته لاس کړه په کور برابرولو کښې دواړه لګیا شوې.

## اجړه

.د کور سامان وغېره برابر شو. کیچن یعني باورچی خانه جدا. د ځملاستو کمرې جدا او د لیبر د اوسېدو ځائے ځائګے جدا. خان کالج ته ځی او بیا ښځه په وخت راځی روټۍ تیاره وی. پشمینه بلنه ورکړی او اجړه ورته اوبۀ واچوی. خان حېران غوندې دے چې عجیبه خبره ده. دواړه ښځې په یو کور کښې د یو بل سره څۀ رنګ ګذاره کوی. یا خو ورته دا ښتون څه توقه ښکاره شوې ده. او یا هسې څۀ نور څه چل دے. دلته اجړه هم په ژور سوچ کښې ده. چې ما څه کول هغه اوس هډو زما زړۀ غواړی نۀ. دا څۀ اوشو. ښکلے زلمے، ښکلې پېغله، لوئے خاندان زما دومره عزت، زما سره دومره مینه. دا هر څۀ څنګه هېر کړم. ولې د ښځۀ او لوئے خاندان عزت په خاورو کښې اولړم. دا ډېره د ګنهګارۍ خبره ده ډېره د بې غېرتۍ خبره ده چې هغه په ما اعتبار اوکړی. او زۀ په اعتبار کښې دوکه اوکړم. خو نا بیا هم دا زما فرض دی. زۀ خپل پلار په دې پسې رالېږلې یم. د خپل خاوند وصیت به پوره کوم. د خپل ترۀ ګټه به کوم (زما خاوند څوك دے) دا

سوال اجړې د خپل زړهٔ نه اوکړو. نکاح مې د شوکت سره دے او خاوند مې خشاکے دے. دا نهٔ شی کېدے. زهٔ خپل رشتینې او مئین خاوند په هیڅا نهٔ بدلوم. ماله خپله اراده بدلول پکار دی د مینې بدله مینه ده. اجړه په یو لوئے فکر کښې پرته ده. پشمینې پرې غږ اوکړو.

پشمینه: اجړې یا اجړې راشه نا مړدې دې کارته خو لږ ګوره کنهٔ چې دا څنګه کېږی. دا خو اوس ستا د عمر کور دے.

اجړه: تاسو دا خلق دومره انګولی ولې پخوئ دې ته څهٔ حاجت دے پشمینې. مونږ شپونکیان خو تروکی را واخلو او مالګه پکښې وټکوو. د جوارو سړه ډوډۍ ورسره اوخورو. د دې نه علاوه د بل انګولی غور هډو کوو نهٔ.

پشمینه: بق بق په خندا شوه. دا څکه خو ښائسته ئې کنهٔ. چې د غم درد نه دمه ئې. دا فکر درسره نشته چې ترکاری به تروه شی. چائے به ورانې شی. پی به خراب شی.

اجړه: اونو ستا سره خو ډېر غم دے نو. هسې خان ته ځان مخائی کوې. نور هیڅ نشته.

پشمینه: ډېره ناکاره ښځه ئې اجړې سړی ته کم عقله ښکارېږې خو پکښې ښهٔ ژوره هوښیاره ئې.

اجړه: چې هوښیاره نهٔ وے نو د شپونکیتوب نه به خانی ته څنګه راتلم. تهٔ دغه دے په خپله خانی کښې

ګذاره نهٔ شي کولے نو لا کهٔ شپونکی شوې نو بیا خدائے خبر چې څهٔ حال به دې وی.

پشمینه: خدائے دې ما شپونکی نهٔ کړی دا دې څهٔ اووې.

اجړه: تاته شپونکیان ولې بد ښکاره شو پشمینې. زهٔ شپونکی نهٔ یم څهٔ. خو ستاسو د ټولو نه راته خلق ښهٔ ګوری.

پشمینه: بس دے بس دا شتهٔ پوره دی. پرېږده اوس دا فضول خبرې. راشه چې اخلے پخلے ایزده کړې.

اجړه په خندا شوه او په ګګو سترګو ئې ورته اوکتل. ښه ده بی بی چې چائے پوخ کړم.

وئ هغه دې وربیرته شو. کهٔ څهٔ خان راغے او دواړه غبرګې د خان خنګ له راغلې. پشمینې ترې کوټ اوویستو. هنګر ته ئې واچولو ټائی ئې په خپل ځائے او بوټان لرې کړل چپل ئې راوړل اجړې دې کار ته په غور کتل. خان کښېناستو او تپوس ئې اوکړو.

شوکت: ډوډۍ تیاره ده؟

اجړه: او او ولې به نهٔ وی تیاره پشمینه دې خدائے ژوندۍ لری.

پشمینه: دروغ وائی ډوډۍ نن دې پخې کړې ده.

شوکت: رشتیا اجړې. ښه ده چې ګټه په ډډه واړوم.

اجړه: وئ دا زهٔ جوړي تاسو ته هډو ښځه نهٔ ښکارم.

پشمینه: دا تپوس د خان نه اوکړه چې هغه څهٔ وائی.

شوکت: ماته خو سمه ښځه ښکاریږي خو دا پشمینه پتې سترګې او ډومباری او وائی چې دا هډو ښځه نهٔ ده.

اجړه: نو بیا څهٔ یم چې ښځه نهٔ یم.

شوکت: یوه ښکلې شپونکۍ چې هر څوك دربانديې مئینېدے شی او زړهٔ دربانديې بائیللے شی.

اجړه: دا هسې دوکه ده. هر کلی وال سړے وخت تر سره کوی او مونږ غرئیز خلق خو په یوه پوهېږو چې لوظ اوکړو نو پوخ وی پوخ.

شوکت: زمونږ لوظ به هم پوخ وی اجړې ګنې امتحان اوکړه.

اجړه: تهٔ لا هلك ئې هیڅ دې نهٔ دی لیدلی زهٔ ګرځېدلې ښځه یم ډېر څهٔ مې لیدلی دی.

شوکت: (شونډې ئې بوسې کړې او قهر غوندې شو. څهٔ دې اووې.

اجړه: وئ تهٔ خو داسې قهر شوې لکه چې مې درته کنځل اوکړل. بد مې اووې څهٔ.

شوکت: یو خاوند دا نهٔ شی زغملے چې د ښځې د خلې نه دې واوری چې هغه د بل چا سره ګرځېدلې ده.

اجړه: خان دا خو يو حقيقت دے زهٔ ترې انکار اوکړم.

شوکت: دا ګرځېدهٔ راګرځېدهٔ هډو بيا نوه مهٔ دې ته هيڅ حاجت نشته. اجړې.

اجړه: رشتيا رشتيا دی خانه کهٔ هر څو پرې تهٔ خفه کېږې.

شوکت: تهٔ ما خفه کول غواړې څهٔ؟

اجړه: نانا هيڅ کله نهٔ خدائے دې تا خفه نهٔ کړی خو کچرې تهٔ څوک خفه کړې نو بيا.

شوکت: دلته څوك دی چې زهٔ به ئې خفه کړم.

اجړه: زهٔ زهٔ درنه خفه يم کنهٔ.

شوکت: پهٔ څهٔ ولې خفه ئې.

پشميني انګولی پخ کړی دی. او په پلېټونو کښې يې ويستلی دی په پتنوس کښې ئې ايښودلی دی. ډوډی ئې ورسره راخستلې ده. او راروانه ده چې د دوئ خبرې ئې تر غوږو شوې نو لګه اودرېده چې څهٔ کوم په پردی جرګه ولې ورځم. نوې نوې وادهٔ شوې. نوې مينه ده. پرېږده چې خوشحاله خوشحاله دا يو څو ورځې تېرې کړی. خو خدائے خبر نن اجړه لګه د نور کله په شان نهٔ ښکارېږی ډېره بدله غوندې ده.

اجړه: نهٔ يم خفه ټوقه مې کوله کهٔ خفه شم نو تهٔ به

څۀ اوکړي.

شوکت: اجړې ما ستا د پاره هر څۀ اوکړل. کلثوم غوندې خوږه خور، په ما ډېره مئينه مور د تړۀ لور پشمينه او مهربان پلار نه مې جدائی اختيار کړه او دلته راغلم خو بيا هم تۀ دا شک کوې چې لا زۀ به ستا په مينه کښې دروغژن يم.

اجړه: نا زما يقين دے تا چې هر څۀ کړی دی ټول دې زما د پاره کړی دی. خو اوس يو کار پاتې دے هغه کول غواړی.

شوکت: اووايه کنۀ مړې څۀ کار دے چې نيمګړے دے نور څۀ خو نشته کۀ پشمينه لېږې چې اوس ئې اولېږم.

اجړه: اول وعده اوکړه چې زۀ څۀ وايم هغه به منې.

شوکت: خپل دواړه لاسونه د اجړې په غاړه کښې واچول او قسم ئې اوکړو چې زۀ به هر هغه څۀ اوکړم چې څۀ تۀ غواړې.

د پشمينې رنګ زيړ شو. وار يې خطا شو هسې نۀ چې اجړه رشتيا دا سوال اوکړی چې تۀ پشمينه پرېږده او يا دا چې کلثوم د خپل تړۀ زوی له اوغواړی. خدائے دې خبر کړی دې ښځې په هلک څۀ بلا کړې ده. دا چرته جادوګره ده کۀ.

اجړه: ښه پخه وعده کۀ هسې وے.

شوکت: ښه پخه وعده.

اجړه: نو بیا غوږ کېږده تا زما د مینې د پاره ډېره قرباني کړې ده. دا کافي ده زهٔ د دې قابله هم نهٔ یم خو ما ته معلومه شوه چې د کلي خلق ډېر ښهٔ دي. ستا د قربانۍ نه زیات قرباني پشمینې ستا د پاره کړې ده او کوي نو دا راز مهٔ ساته بېګاله مولوي صېب راوله او د هغې سره نکاح پوخ کړه. مونږ به دوه بنې نهٔ بلکې دوه خویندې په دې کور کښې ګذاره کوي.

شوکت: دا دوکه ده فرېب دے تهٔ ما ازمائې.

اجړه: دا نهٔ دوکه ده او نهٔ فرېب دا مینه ده صرف مینه پشمینې ما ته د خپل خور مینه راکړه چې نهٔ هېرېدونکې ده.

شوکت: (د خندا شین شو)

اجړې دا دې په ما ډېر لوئے احسان اوکړو ځکه چې یو خو پشمینه زما د مړ ترهٔ نخښه ده. بله دا چې زما پلار زما د پاره کویژدن کړې وه. د ټولو نه سخته خبره دا وه چې پښتنو سړو ته ښځې پرېښودل ډېر زیات ګران دي. دا احسان به زهٔ ترقیامته هېر نهٔ کړم. ښه ده زهٔ به نن کلي ته لاړ شم او بابا دلې سره به ستا دا خبره اوکړم.

اجړه: ضرور لاړ شه او خامخا لاړ شه.

پشمینې غاړه تازه کړه. ډوډۍ ئې راوړه په مېز ئې

کښېنو دله. او اجړې خان ته اوبهٔ واچولې. خان کښېناستلو روغندې ئې پشمينې ته اوکتل.

شوکت: پشمينې روټۍ چا تياره کړې ده.

پشمينه: اجړې تياره کړه کنهٔ. نور به چا تيار وله؟

اجړه: ملنډې ولې کوې پشمينې زهٔ به هم ايزده کړم خا

شوکت: ولې تا نهٔ ده پخ کړې څهٔ؟

اجړه: نن مې صرف چائے پوخ کړے دے. تا چې د کالج نه نوکر رااولېږلو چې مېلمانهٔ دی نو پشمينې راته اووې راشه دا چائے خو پوخ کړه چې ايزده ئې کړې.

شوکت: خا زهٔ لا څهٔ خبر ووم. ستا سو خو پوره دوستی ده مونږ ته مو چل جوړ کړے دے کهٔ.

اجړه: د چل ول خبره نهٔ ده خو زما چې څهٔ خيال وهٔ نو......

شوکت: هن ولې؟

ستا بل څهٔ خيال وهٔ کهٔ.

پشمينه: نا نا هيڅ خيال ئې هم نهٔ وهٔ. دا هسې اوتې بوتې وائی هډو په خبرو پوهېږی نهٔ.

اجړه: او کنهٔ تهٔ خو ډېره پوهېږې نو.

شوکت: اوس پرېږدۍ دا جنګ. دا اووايئ چې بېګاله به ډوډۍ څوك تياروی.

پشمينه: دا به پخه کړی کنهٔ.

اجړه: (د خندا شنه شوه)

او زۀ زۀ به پخه کړم خو په یو شرط.

پشمینه: څنګه شرط.

اجړه: زۀ به د کور نه اووځم په بڼ کښې به لرګی ټول کړم او بیا به راله د ګټې نغرے جوړ کړئ د جوارو اوړۀ راکړئ په تبۍ به درله ډوډۍ پخه کړم.

پشمینه: او چائے به په څۀ کښې پوخ کړې.

اجړه بیا د خندا شنه شوه او خان ته ئې اوکتل.

شوکت: ښۀ وائی کنۀ چائے به په څۀ کښې پوخ کړې.

اجړه: (په سوچ کښې شوه)

چائے په چائجوش کښې او دوه ګلاسونه به راله سلوری راکړې په هغې کښې به ئې راوړم.

شوکت په ټوقو ټقالو کښې ډوډۍ اوخوړه. خان ئې ښۀ موړ کړو. اجړې ډېر راه نۀ کړه. لوخی ئې د مېز نه اوچت کړل او بیا ئې خان ته اوبۀ واچولې. پشمینې ورته اووې.

پشمینه: ډېره تادی مۀ کوه اجړې کار به زۀ کوم. خبر دے.

اجړه: زۀ د کور ښځه یم او تۀ لا مېلمنه ئې. چې بېګاه له دې نکاح اوشی نو بیا به کار روزګار کوې. پوئې شوې.

پشمینه: ښۀ پوره خبرې دې ایزده کړې دی بارې خا.

پشمیني خان ته مخ واړولو او وې وئیل کټ سم کړم ارام کوې کنهٔ.

شوکت: نانا ارام ته څهٔ ضرورت دے اوس خو ځم کنهٔ چې کلی ته لاړ شم او بابا دلې خبر کړم چې هغوئ د وادهٔ بندوبست اوکړي.

پشمینه شرمېدونکې غوندې کمرې ته واپس لاړه او اجړې خان ته بوټان برابر کړل. روغوندې ئې ورله په اوږه لاس کېښودل او ویې وئیل.

اجړه: په مخه دې ښه. خدائے دې په ډکه منګل واپس راوله خو چې کلثوم او مور دې هېر نهٔ کړې. دلدار او واکدار هم راوله.

شوکت: پوره لوخے یې. هر څوك دې پېژندلی دی. ضرور به ټول راولم.

او د دې سره شوکت د کور نه رابهر شو. بازار ته راکوز شو او د بس په انتظار اودرېدهٔ. څهٔ لږ وخت پس بس راغے او شوکت کورته را اورسېدو. زړهٔ کښې ئې اووې چې حجرې ته به څنګه لاړ شم خو راشه کور ته لاړ شه. مخې له ئې دلدار راغے. دواړه یو بل ته ترغاړه وتل.

دلدار: پرېږده مړه دوه درې ورځې تلل دې څهٔ وو چې لکه د عمر مسافر ښکارې.

شوکت: دلداره وروره د سترګو کېږې مې

خو....

دلدار: او او دا ستا غونډې هېرونکې خلق تل داسې وائی.

شوکت: قسم مې دې وی چې زۀ د یوې مخې سړے یم. څۀ چې مې په زړۀ وی هغه مې په خلۀ وی. کنۀ اوګوره تۀ څۀ حال مې شو خو دا صرف زما د پاك ضمیر وجه ده.

دلدار: تۀ ورك شه او دا پاك ضمیر دې ورك شه. خلق دې ټول په حېرت کښې اچولی. مور خفه. پلار پرېشانه او خور وارخطا چې څۀ به کېږی.

شوکت: په دې کښې د خفګان څۀ دی. دا خو زما ځانی فېصله وه او اومې کړه. د دې سره د نورو خلقو څۀ کار دے.

دلدار: دا ځنې فېصلې په ټولو خلقو اثر انداز کېږی شوکته. تۀ لا په دې نۀ پوهېږې.

شوکت: هغه څنګه.

دلدار: لکه چې خان صرف په دې خفه دے چې پشمینه بی بی ولې هسې پاتې شوه نو... او هن رشتیا. هلکه شوکته هغه بله ورځ خو خان داسې قهر شوے وۀ چې دا شرمېده نۀ. چې د دې دوس سره تله. هغۀ دا پرېښودله شپونکې ښځه ئې خوښه کړه. او دا هغسې په هغۀ چا پسې ځی چا چې د پښتنو د غېرت او عزت رسی شلولې ده.

شوکت: (مسکے غوندې شو) نو چا ورته څۀ اووې.
دلدار: څۀ به ئې ورته وئیلی وو خبره د هغۀ حقه وه نو.
شوکت: زما ئې څۀ نۀ وې چې دے ځنګه دے.
دلدار: خفه خو ډېر دے خو دا ئې اووې چې تقدیر ته غاړه ایښودل دی. نور هیڅ نۀ شی کېدے. لیکن سوړ اسویلے ئې د خلې لاړو او اووئیلې چې انجام به ئې څۀ وی. بخوانی خلق خو هسې هم هوښیاران دی پېښه دې هر څۀ ئې نظر ونې.
شوکت: معلومېږی داسې چې تاسو ټول خلق د اجړې متعلق بدګمانی لرئ.
دلدار: او نو. نور څۀ دی. هر سړے وائی چې د خاز ځوے وۀ دوکه ئې کړو. شپونکی ازاده ښځه ده چې وخت ئې تر سره شی. نو په خپله مخه به ځی.
شوکت: دا ځنګه کېدے شی وروره.
ستا هم دا یقین اخلی.
دلدار: زۀ هم د دغې خلقو قابو قابو ملګرے یم.
شوکت: د زړۀ نه زړۀ ته ضرور لار وی. زما په خپل خدائے دا یقین دے چې زۀ ئې په اجړه مئین کړے یم. نو زما د پاره به ئې د هغې په زړۀ کښې هم مینه ایښودلې وی. اجړه نۀ ما هېرولے شی او نۀ بدلولے.

دلدار: په خلې دې ګوړې شه خدائے دې خبر کړی د خاندان د عزت سوال دے پکښې.

شوکت: هم دغسې به کېږی او کچرې ستا سو خبره درسته شوه. نو زۀ هم څۀ جولا نۀ یم چې عزت به په محبت سپزم. د تماچې دوه ګولۍ ورله پوره دی. سره به ئې کړم. تۀ به اووینې چې وینه خوږه ده کۀ مینه.

دلدار: خدائے دې نۀ کړی دا خیال د زړۀ نه لرې کړه دا کم عقلی چرته اونۀ کړې. خلق به څۀ وائی.

شوکت: د خلقو د وینا پکښې څۀ ځائے دے. او څۀ به وائی؟.

دلدار: دا دې بیاد ناپوهۍ خبره اوکړه. خلق به درپورې نور څۀ دروغ جوړ کړی او د اجړې په لمن به هغه داغونه اولګوی چې د ټول خاندان عزت به داغدار شی. اوس خو چې هغه څۀ کوی نو کوی به. تۀ خو داسې ګرځه چې نۀ څۀ وینې او نۀ څۀ اورې.

شوکت: دلداره زۀ په هغه زلمو کښې نۀ یم کوم خیال چې ستا دے. ما پاک محبت کړے وۀ او په لاس مې راغے خو د ښځې غلامی نۀ شم کولے.

دلدار: پرېږده اوس دا خبرې پشمینه بی بی ښکله ده. اجړه به وائی چې دا مې لا څۀ رنګ مزدوره موندلې ده.

شوکت: نانا هیڅ کله هم دا نۀ وائی. ما خو درته ځکه

اووئيل چې تاسو چې د اجړې متعلق کومه رائې قايمه کړې ده دا ټوله غلطه ده ځکه چې اوس تا اووې چې اجړه به وائی چې څۀ ښه مزدوره ده. دا هغه هيڅ کله نۀ وائی. هغې ماته هغه بله ورځ اووې چې زۀ پشمينه بی بی پيژنم دا ستا غوښتلې پېغله او د مړۀ ترۀ نخښه ده او نن ئې راته اووې چې تۀ کور ته لاړ شه دلدار، واکدار، پلار مور او کلثوم راوله چې ستا او د پشمينې نکاح اوکړو. مونږ به لکه د دوو خوئيندو ګذاره کوو. دلداره تۀ اووايه د دې نه نوره ښه خبره څۀ کېدے شی.

**دلدار:** (شوکت ته ترغاړه وتو)

خانه قسم مې دې وی چې د اجړې او ستا په قسمت ډېر زيات خوشحاله شوم. ځکه چې پشمينې بی بی ستاسو د پاره ډېره قربانی کړې وه. او خان بابا به هم ډېر خوشحاله شی. اوس ځه چې ځو.

دوئ روان شول شوکت کورته راغے او دلدار حجرې ته د خندا شين وراغے. خان ترې تپوس اوکړو. دلداره چرته نه راغلې. دلدار ورته ټوله قيصه تېره کړه. هيبت خان او واکدار ماما ډېر خوشحاله شول. شوکت کور ته دننه شو. کلثوم رامنډه کړه او ډېر په مينه په ادب ئې ورته پخېر اووې.

**کلثوم:** پشمينه څنګه ده او اجړه ښه ده کنۀ.

شوکت: پشمینه هم ښه ده او اجره هم ښه ابغه نېغه ده او راغلم دې له چې بېګاه له زما او د پشمینې نکاح دے. په تاسو پسې راغلم.

کلثوم د ډېرې خوشحالۍ نه ټوپونه اووهل.

کلثوم: دا څنګه لالاجی ګورے چې اجره خبر شوه کۀ. ابۍ یا ابۍ تۀ دلته راشه لالاجی مې راغلے دے مور ئې راغله او شوکت ئې ښکل کړو.

مور: پل دې بختور شه. قدم دې برکتی شه. بچیه څنګه دې پېښه اوکړه.

کلثوم: پېښه ئې دې له اوکړه چې بیګاله د پشمینې نکاح تړی او مونږ د ځان سره بوځی.

مور: نو اجره هغه به څۀ وائی.

شوکت: اجره ډېره هوښیاره ښځه ده هغه د هر څۀ نه خبر ده دا راته هغې اووې چې پشمینه زما خور ده چې تر څو د دې سره ستا نکاح نۀ وی شوے نو زۀ به خفه یم. نن تۀ لاړ شه دوی راوله. نو د بابا نه خو ښۀ خبر نۀ یم او تاسو ځان تیار کړئ چې ځو.

کلثوم او مور یې ځان تیار کړو. ورشه وړې د واکدار ماما ښځه راولۍ هسې نۀ چې ناوخته شی.

شوکت: او او هغې ته اواز اوکړه واکدار او دلدار راسره هم ځی.

د دې سره دوئ د سامان په تیاری کښې مشغول شول.

# صباؤن

جینۍ په منډه راغله او په دروازه کښې ئې په زوره اواز اوکړو. قمرې اے قمرې یوه شېبه ولاړه خو واپس ورله چا جواب ورنهٔ کړو نو بیا ئې غږ کړو. چې قمرې اے قمرې. ترور څهٔ شوه. میراتې هډو غږ نهٔ کوې مرۍ مې په چغو چغو اوچه شوه. په کوم کوټ کښې ورکه شوې ګورے چاړې شوې کهٔ.

چې اوچت ئې اوکتل نو صباؤن ئې په سر ولاړه وه.

صباؤن: یا جینۍ څهٔ چل دے خېر دے کهٔ دا داسې چغې ولې وهې.

جینۍ: ځان تیاروئ بی بی دې ښکته کورته ځی.

صباؤن: کوم کورته. ښکته بل کور کوم دے. دا تهٔ وائی لېونۍ.

جینۍ: د کشر خان هغه ښکته کور نهٔ دے هغه چې دے هغه کور.

صباؤن: زهٔ خو هډو پوهه نهٔ شوم چې دا جینۍ وائی څهٔ قمرې تهٔ څهٔ پوهه شوې.

قمره: تهٔ چا مونږ پسې رالېږلې يې او څهٔ له ځې.
جينۍ: د کشر خان وادهٔ دے.
قمره: د چا سره بيا د اجړې سره وادهٔ کوی کهٔ. کهٔ چرته پله ګوجره ئې موندلې ده.
جينۍ: نانا زمونږ د هغې بی بی سره وادهٔ کوی.
قمره: يقين مې نهٔ اخلی نو. دا څنګه کېدے شی.
جينۍ: قسم مې دې وی چې راغلے دے. بيبيانو ځان تيار کړے دے. خو وائی چې دوئ به راسره هم ځی. شابئ ځان تياروئ.
قمره: ښه ده څه تهٔ څه مونږ درځو

جينۍ را رخصت شوه. قمرې خپلې مورته اوکتل د خوشحالۍ اوښکې يې د سترګو نه روانې شوې او وې وئيل ابۍ خدائے ډېر لوئے رحيم دے واقعی د غريبانانو مدد کوی.

صباؤن: دا وخت د خبرو نهٔ دے ځان تياروه. ناوخته به شی بيبيانې خو بيا چا ته ايسارېږی نهٔ.
قمره: نهٔ دې ايسارېږی کنهٔ په مونږ پسې ځان له استاذے راغلے دے. او ځان له به ځو.
صباؤن: قمرې هغه شان دې لا د زړهٔ زور نهٔ دے کم شوے خدائے مې دې ستانه دمه کړی نو.
قمره: شکر اوباسه چې زهٔ په دې کور کښې يم. يوه

دوے څوے دي دے او تر اوسه بې ښځې ناست دے
مزدوری به درله څوك کوی.

صباؤن: تا دي خدائے ورکه کړی نو زما خدائے ثواب
ګیر دے. داسې خوشحاله یم نن چې هډو په جامو کښې نۀ
ځائیږم. دا مې د زړۀ غټ ارمان وۀ چې پشمینه پختل لاس
ناوې کړم. او د شوکت ښځه شی. مور ئې ډیره ښۀ ښځه وه.
زما سره ئې داسې ښۀ کړی دی چې د هیرېدلو نۀ دی. پلار
خو ئې سمه ملائیکه وه ملائیکه. خو افسوس چې نېکان
خلق په دنیا ډیر نۀ پاتې کیږی. پرېږده مونږ بدبخته خلق چې
هډو مرو نۀ. او داسې ښۀ خلق هیڅ چرته هم نۀ پاتې کیږی.

د دې خبرې سره صباؤن غریب اونیوله مرۍ ئې اوچه
شوه او په مخ ئې د سترګو نه اوښکې او څڅېدې. ژړا ئې لړه
غلې کړه یوه پښه ئې کټ ته اوخېژوله او بله ئې نیمګړې په
پڼه (چیتره) کښې اینښودلې وه. رو غوندې ئې اووې.

قمرې لور تۀ به حیرانه شوې ئې. چې ابۍ ولې ژاړی
څۀ لېونۍ شوه کۀ. مونږ خو د ټولو خانانو نمکونه خوړلی
دی. خو د شوکت مور د خوئ نه لړه توده ده او هغه داسې
ښځه دې اوبخښی یوه ورځ ئې خوا ته لاړم. چې زۀ ئې
اولیدم نو سپکه راپاسېده.

سیاله: صباؤن پخیر راغلې راځه کښېنه نامړدې
هډو رانښکاره کیږې نۀ. ستا غوندې هوښیار خلق چې د چا

خواله راشي نو د سړی سود پرې اوشي. کله ناکله خو رابنکاره کېږه کنهٔ.

دلداره تهٔ ئې هم راوستې بچیه. دا دلدار څنګه دے

صباؤن.

زر ئې واخستو په دواړه مخه ئې بنکل کړو او لاړې

ئې وړته توکړې.

خدائے دې د نظره نهٔ کړی د واکدار زوے دے. د

پلار په شان وفادار بنکاربږی ماته هم د خپل بچی نه کم نهٔ

دے خدائے دې د هرې بلا نه په امان کړی.

صباؤن: بی بی تا دې خدائے ژوندۍ لری چې زهٔ نهٔ راځم نو څوك به راځی. خو نااوزګارې ورځې دی هډو پښه مې نهٔ لګی. هلك او جینۍ واړهٔ دی او د کار راسره څوك نشته نور. او سړے یواځې هم دے او بله دا چې د خان د کار نه نهٔ دے اوزګار. یك یواځې رابانديې د کور ټول پېټے پروت دے. په تاسو خو د خدائے فضل دے مزدوران او د کلی نور غریبانان خلق کار له راځی. مونږ خو سترګې نهٔ شو اوچتولے. د سحر نه تر مابنامه پورې د کور د کاره اوزګاربدل نشته.

**سیاله:** د دنیا کارونه دی په سر نهٔ لګی خامخا تلهٔ راتلهٔ کوه. په ګاونډ کښې دې ځان داسې ناغرضه کړے دے چې د پشمینې پلار ژوندے وهٔ نو تلې راتلې به. اوس چې

رانهٔ شي نو ماته خپله بې ارضی اودربړی چې ګورے د خان په سر د خلقو خوښه ووم کهٔ. ځکه چې اوس خو راته هډو ګورې نهٔ.

**صباؤن:** خدائے دې نهٔ کړی تهٔ کهٔ کشره ئې. خو زمونږ مشره ئې او بیا مونږ ته خو لکه د مور غوندې د مینې ډکې خبرې کوې. پشمینه دې خدائے لویه کړی. خان دې خدائے اوبخښی ډېر نېك سړے وهٔ.

د دې خبرې سره د دواړو د سترګو نه غبرګې اوښکې روانې شوې.

ما پشمینه په ترخ کښې اونیوله او هغې دلدار واخستو داسې مینه ئې ورسره اوکړه لکه چې د هغې خپل ځوے وی. چې هلك ته ئې اوکتل نو.

**سیاله:** وی هلئ. صباؤن په سترګو ړنده شې. په هلك خو دې داسې دانې راختلې دی. سم پیمانه دے. چم دے. چم. لرې ګونه دې ورکه شه تا ورته هډو کتلی نهٔ دی. دا عاجز خو زرې زرې شهٔ. راشه تهٔ اوګوره تهٔ داسې ظالمه مور ئې دې غریب خو به تېوله شپه ژړلی وی.

**صباؤن:** وهٔکنهٔ بی بی ټوله شپه ئې ژړلی دی. خو ما وې چې ګورے په غوږ ئې درد دے کهٔ. تاودهٔ تېل مې ورته په غوږ کښې اچولی دی. د دانو نه ئې څهٔ خبر ووم.

**سیاله:** تهٔ ورځه کښېنه زهٔ راځم.

سیاله لاړه چائے یې باندې کړو او ورسره ئې په بل لوخی کښې اوبۀ ګرمې کړې. لږ وخت تېر نۀ وۀ چې راغله.

هن صباؤن تۀ چائے ښنبه او پشمینه هم قلاره او دلدار ماله راکړه.

ماوې چې دا پرې څۀ کوی. ورمې کړو وروستو را اووته. د خندا شنه وه او هلك ئې سنبال کړے ماله راکړو.

ښۀ ئې په ګرمو اوبو لمبولے وۀ. او د دانو د لرې کولو صابن یې ورله یو ځکی په لاس کښې ورکړے وۀ.

د پشمینې پاکې جامې ئې ورته بدلې کړې وې هلك ښۀ خوشحاله تروتازه راغے لکه چې ټوله شپه ئې سترګې یخه نۀ وی پاتې شوې. خو لکه د سحر د خوب نه چې راپاسېدلے وی.

**صباؤن:** بی بی تا ولې دا تکلیف کولو. ماته به دې خونه ښئلې وه. نو ما به لمبولے وۀ. وړې جینۍ درپسې داسې ژړل چې نااشنا. سینې ته مې واچوله نو هلۀ قلاره شوه.

**سیاله:** ښۀ دې اوکړو ستا سینه ډکه ده بارې ما ابله ورځ دا فکر کولو چې کۀ چرې زۀ ناجوړه شوم نو دا جینۍ به چاله ورکوم. څوك به ئې ساتی. خو ښه ده چې تۀ مې په نظر شوې.

صباؤن! خدائے حق دے او مرګ دے کۀ نۀ وم نو

پشمینه به بل چاته نهٔ پرېږدي. دا به خپل کور ته وړي په خپله سینه به ئې لویوي.

**صباؤن:** دا تهٔ څهٔ د لېونو خبرې کوې مرګ څهٔ کوی تهٔ خو ښه روغه رمټه ښځه ئې. او بیا د مرګ یرې واخستلې. تاسو دا خانان خلق د مرګ نه ډېر یرېږئ خو چې په سر مو دړد راشی نو بس تیار مرګ د ے مرګ.

**سیاله:** صباؤن زړهٔ مې درزېږی د یو څو ورځو راسې مې خوب نشته. ډېره یرېږم. دوه درې شپې مې د پشمینې پلار په خوب کښې اولیدهٔ. او راته وائی چې راځه په خوشی کور کښې به څهٔ ګذاره کوې هسې نهٔ زما ورور درنه خفه شی. دا راته هم وائی چې تهٔ پردی ښځه ئې او هغه زما داسې مشر ورور د ے چې په ما لکه د پلار مئین وهٔ. او زهٔ ئې د ځوی په شان ساتلے یم. کهٔ چرې هغه درنه خفه شو. یا زما ورندار نو بخښنه مې درته نشته.

**صباؤن:** کم عقلې په خوب هم څوك عمل کوی دا خو ستا تصور وهٔ ځکه دې خوب اولیدهٔ. او واقعی هغه خو په مشر خان داسې مئین وهٔ لکه د ځوی. زهٔ وایم چې که چرې هغه و ے نو مشرخان به د ځوی ارمان نهٔ وهٔ. او دې ته تهٔ ګوره چې د مړکېدو په وخت ورته مشرخان اووې چې وروره خفه کېږه مهٔ زهٔ به ستا لور په خپل کور پاتې کوم. پشمینه به د شوکت وی. دا زما د لور په شان ماته ښکاری او شوکت

مې ځوے دے. د دلدار پلار وائی چې خان دا خبره اوکړه خو د پشمینې پلار مسکے شو او تندے ئې غتې شو. په کتې کښې پټه پټه ډېره شو. چې دادا اوس به په روغ زړهٔ مړ شم. ما سره هم دا غم وهٔ چې پشمینه به څهٔ کوی. مبارك شه پشمینه ستا لور ده او شوکت زما ځوے دے. دا دې په ما دومره احسان اوکړو چې د قیامت په ورځ به ئې هم هېر نهٔ کړم. او اوس کهٔ مرم نو په روغ زړهٔ به مرم. خدائے دې اباد او خوشحاله لره. بخښنه راته کوئ او د دې سره ئې ساه ورکړه.

د دې خبرې سره صباؤن او سیاله یو تربله غاړې وتې او په چغو چغو ئې اوژړل. خپل خپل فریادونه یې اوکړل صباؤن پاسېده.

**صباؤن:** بی بی زهٔ اوس ځمه.

**سیاله:** کښېنه مړې صباؤن! لږه به ناسته وې. داسې سود مې درباندې اوشو. کله نا کله راځه.

**صباؤن:** ولې به نهٔ راځم زمونږ نور څوك دی. لاړم بی بی ژوندۍ اوسې. راکړه تهٔ دا پشمینه چې سترګې ئې ښکل کړم. داسې ښائسته ده چې سمه دمه د څوارلسمې سپوږمۍ ده. توپ توپ لاړې ئې ورته توکړې لاړم د کور خلقه خوشحاله اوسئ.

**سیاله:** اے اے جینۍ.

داسې تش لاس نهٔ شې تلے. په اس سوره ئې هلهو

ایسارېږي نۀ. لږه اودرېږه. تۀ هن دا په پلو کنبي مې يو لپه وريژې راخستلې دی دا به دلدار له په دې راروان شو قدر کنبي پخې کړې خو ټکنۍ به ترې پخه کړې.

**صباؤن:** دا تکليف ولې کوې بی بی دا خو زما کور دے چې هر وخت مې ضرورت کېږی نو راځم به او اوړم به.

**سیاله:** په دې څۀ کېږی چې ستا غوندې ښځې لږ ځيز واخلی نو په ما ئې احسان دے خو چې زما خبره هېره نۀ کړې پشمينه به ضرور وړې.

**صباؤن:** (په خندا شوه)

تۀ خو جوړې رشتيا مرې.

قمرې لور زۀ ترېنه راغلم. دغه شپه تېره شوه. سبا د ساخت وخت وۀ. زۀ کور ناسته ووم. ستا پلار لرګو له تلو. هغۀ تبر (کلهاړی) او منجيله را واخستله. دۀ څپلۍ په پښو کړې او په روانيدو کښې شو چې په دې کښې د خان نائی اواز اوکړو.

**نائی:** ماما اے ماما. زر راشه تا ته مشر خان نارې وهی.

**واکدار:** (د کور نه اواز اوکړو)

څۀ وے هلکه خېر دے. زۀ خو لرګو له ځم بهانه ورته اوکړه رابه شم.

**نائی:** ماما د بهانې شے نۀ دے. سياله بی بی په حق اورسېده. ناڅاپی ئې په سر دړد راغے او څۀ لږ وخت

وروستو مړه شوه. د هغې خدمت کول دی.

قمرې لور دا خبره مې په خپله واورېده. ستا پلار مخ راستون کړو خو ما ورته اووې چې ما هر څۀ واورېدل پښې ابله مې منډه کړه چې لاړم د کلی په خلقو د شین اسمان تندر راپرېوتے وۀ. د غرمې نه مخکښې مخکښې د ګور کفن انتظام اوشو. ما اولمبوله ځکه چې دا هم د هغې وصیت وۀ. چې راتلم نو د شوکت مور راته غږ اوکړو.

د شوکت مور: صباؤن تۀ خو غلې اوځې خو د سیالې هغه وصیت دې هېر کړو څۀ. پشمینه خو زما لور ده خو سینې ته ئې نۀ شم اچولے. ځکه چې خان وئیلی دی چې پشمینه د شوکت ده او سیالې تاته دا هم وئیلی وۀ چې پشمینې له به تۀ د خپلې سینې پیے ورکوې. او ځان سره به ئې وړې. هن واخله دا خپل امانت.

زما سترګې د اوښکو نه ډکې وې. په ترخ کښې مې دلدار وۀ ما وې لږ صبر اوکړه چې دلدار یوسم نو بیا به راشم. د کوره بیرته لاړم او پشمینه مې راوړه. دا شپږ کاله ما په خپله غېږ کښې لویه کړې ده. اوس د خانانو کره تلې ده ډېر ښۀ خوئ ئې دے. ماته د خپلې لور په شان ده. او د خانۍ خوئی خو پکښې هډو نشته. ماته د خپلې مور په شان ګوری.

د شوکت مور هم ډېره ښه ښځه ده د پشمینې او د

سیالې بی بی په سترګو زما داسې قدر کوی چې نا اشنا او دلدار خو ورته د شوکت غوندې ښکاری.

دوئ په خبرو کښې مشغولې دی چې په دې کښې د نائی ښځه راغله.

**د نائی ښځه:** صباؤن ترور دا تهٔ څهٔ کوې؟ بیبیانې تیارې ولاړې دی او تهٔ داسې په قلاره ناسته ئې چې څهٔ غم درد دې نشته. تلهٔ به غواړی اوکنهٔ.

**صباؤن:** وئ لورې تلهٔ خو مې لاهېر دی چې لا مونږ به هم چرته ځو. قمرې خدائے دې میراته کړه تهٔ هم راته دانهٔ وائې چې مونږ د پشمینې بی بی وادهٔ له ځو. هله شابه هغه څادر راله راکړه.

**قمره:** کوم یو څادر هغه تور کهٔ شین.

**صباؤن:** نهٔ پوهېږم چې تور ښهٔ دے کهٔ شین ښهٔ دے.

**قمره:** شین ښهٔ دے مور. پاك هم دے او نوے هم دے. هن دا جامې دې هم بدلې کړه. خپله خنې واچوه او نوے څادر په سر کړه چې ځو ناوخته دے.

دوئ زر زر ځان سنبال کړو. او د خانانو کره راغلې. د شوکت مور او کلثوم ورته د مینې هرکلے اووې.

**صباؤن:** ځو کهٔ لا ایسار یو؟

**کلثوم:** لږ صبر اوکړه د بابا نهٔ تپوس کوو چې هغه مخکښې ځی کهٔ مونږ.

صباؤن: هغه به ولې مخکښې ځی مونږ به اول ځو چې جینۍ ناوې کړو. سړی خو خوراك له ځی د دوئ نور څۀ کار دے.

کلثوم: (پۀ خندا شوه)

ترور داسې ښۀ خبره دې اوکړه مونږ به مخکښې ځو. ورشه جینۍ هله ډرایور ته اووایه چې مونږ به مخکښې لاړې شو او خانان به وروستو راځی. ترور تاسو تیارې یئ. وئ ستا خو پښې نشته پښې ابلۀ پښې ئې.

صباؤن: خدائے دې دا قمره ژنده کړی دا همېشه ما داسې شرموی جامې او څادر ئې راله راکړو او بیا یې داسې په تادۍ راپه منډه کړې یم چې پیزار مې هېر شوے دے ورشه هله پښې مې راوړه جینۍ.

قمره په منډه منډه لاړه او پښې یې مور له راوړې. دوئ ښې په ډول سنگار موټر ته اوختلې او روانې شوې. څۀ لږ وخت پس د کالج د کالونۍ د بنگلې نمبر ۱۲ په خوا کښې اودرېدۀ.

شوکت د موټر نه زر راکوز شو. دروازې ئې ټولې بیرته کړې. استاذه تۀ موټر په شا بوځه بابا دلې به راولې او ورسره به د کلی مولوی صېب راولې خا. چې هېر دې نۀ شی.

ډرائیور موټر ریورس کړۀ. او په تېزه لاړ. چې بله ډیوټی اوکړی. زنانه راغلې په کوارټر رادننه شوې. اجړه یك

یوا ځې ولاړه وه. ځان ئې سنبال کړے وۀ تهولو ته ئې سلام اوکړو. د شوکت مور او د قمرې د مور په پښو پرېوتله. قمرې ته ترغاړې وته او کلثوم ته.

**اجړه:** راځئ ابۍ په کتهونو کښې کښېنۍ. تاسو کښېنۍ چې زۀ درله د چې غور اوکړم. ستاسو نه زار شم. دا لا ښه ده چې د خان وادۀ دے او تاسو راغلئ ګنې زۀ خو شپونکۍ ګوجره ښځه ووم. په ما خو مو سترګې نۀ لګولې. کلثوم دا دوه ښځې خو ما اونۀ پېژندلې.

**کلثوم:** دا د دلدار خور او مور دی.

**اجړه:** وئ ستاسو نه زار شم. دلدار خو داسې ښۀ هلك دے چې زما ورور دے او ډېره مرسته ئې راله کړې ده چې ډېره زیاته. خور تۀ مې خور ئې او ابۍ تۀ مور ئې زما.

**صباؤن:** ماته خو دې داسې خوږې خبرې اوکړې لورې چې زما خو لور ئې.

**قمره:** ماته خو د خور نه کمه نۀ ښکارې.

**صباؤن:** بچې دغه شان ښائسته خوئ کوه. د عزت ډکه اوسه. پشمینې ته چرته سترګې کوزې نۀ کړې لورې.

**اجړه:** دا غم مۀ کوه مورې دا د پشمینې کور دے. زۀ صرف خپل رنګ او د خان مینې دې کورته راوستلې یم. نور حق د دې دے او هر سړے پردے حق پېژنی. حق دې خدائے حق دار ته اورسوی.

کلثوم: دا مۀ وایه اجړې اوس دلته ستا هم حق دے تۀ هم زمونږ د وررور او خاندان عزت ئې. خو پښمینه مونږ ته ګرانه په دې ده چې بې څوکه ده. د هغې کوشش څکه کوو.

اجړه: ماته هم دا خیال راغے چې پښمینه بې څوکه ده دا د خان وینه هم او مینه هم ده. ماته هم پښمینه لکه د خپلې خور ښکاری. خور څۀ چې د خور نه راته هم ګرانه ده. داسې په ناکام ئې راسره دا څو ورځې تېرې کړې دی چې نا اشنا ګنی نۀ په خپله پوهېږم او نۀ راته دا د کور سنبالښت معلوم وۀ چې داُ څۀ دی او څنګه چل ورسره کېږی. خو په پټه خلۀ او په قلاره لکه د مور ئې راته هر څۀ ګوته په ګوته اوښودل. دا سوټ کېس دے. دا غسل خانه ده. دا انګیټهۍ ده یعنې په هر څۀ ئې جدا جدا پوهه کړم چې دا څۀ دی او د څۀ د پاره دی. دا ښکی زۀ د هغې نۀ شم هېرولے هغه به د دې کور مېرمن وی او زۀ لکه د مزدورې په دې کور کښې ګذاره کوم.

صباؤن: پښمینه څۀ شوه اجړې.

اجړه: ولې په تاسو دومره تادی ده رابه شی کنۀ.

قمره: زما ئې لیدو ته ډېره تادی ده.

کلثوم: ښۀ وائی اجړې چې مونږ خو ئې وینو کنۀ اوده ده کۀ؟

اجړه: اوده هم نۀ ده او تاسو ئې لیدے هم نۀ شئ

چائې تیار دے. تاسو چائې اوڅښئ او زهٔ به درله پشمینه راولم.

دوئ حېرانې غوندې شوې چې دا څهٔ وائي. دوئ زر زر چائې اوڅښو. میتاپانې ئې اوخوړلې. اجرې ورته اووې. کلثوم خور د خپل چایو بندوبست کوه ډېر وخت تېر شو دوئ چائې هم اوڅښو.

ناڅاپي اجره را اووتله او پشمینه ئې دننه په سم کړی کټ کښې ناوې کړې وه.

کلثوم او قمرې رامنډه کړه. زر ورته کټ ته اوختلې. صباؤن او د شوکت موز ترېنه هم چاپېره کښېناستلې.

کلثوم: اجرې! ناشنا هوښیاره وې. ما خو وې چې شپونکې ورندار مې ده گورے چې ورور به مې څهٔ کوی خو اوس خوشحاله شوم. تهٔ اوگوره ترور! پشمینه ئې داسې سنبال کړې ده چې ناأشنا. ډېره ښائسته ښکاربږی.

قمرې لوگے ورته اوکړه چې د نظره نهٔ شی. اے جینۍ اے پشمینې! سترگې خو اوچتې کړه نامردې کنهٔ زمونږ. نه شرمېږې څهٔ. نور څوك نشته خو قمره او د هغې د موره زهٔ او ابۍ یو.

خو پشمینې د یوې ناوې درسم ساتلو په وجه هډو غږ اونهٔ کړو. دوئ گېرچاپېره ناستې وې او خبرې ئې کولې چې ناڅاپي د موټر هارن اوشو.

قمره: کلثوم! خان بابا دلې راغلل کۀ څو. چې څه لږ وخت اوشو. نو خان بابا، کاردار، دلدار نائی او مولوی صیب راغلو. اوس دوئ لږه ډېره دمه اوکړه د دې نه پس دلدار د پشمینې د سر واك واخستلو او په وړوکی شان بېتهك کښې په شرعی ډول د نکاح رنګین او ښائسته پروګرام اوکړے شو. میتهایانې تقسیم شوې. او مولوی صیب د سلو روپو نوټ په جېب کښې واچولو بیا دوئ د خاندان د خېریت دعاګانې اوغوښتلې پلار ئې شوکت ته اووې.

پلار: بچیـــه! اولاد د زړۀ غوښــې وی تــا چـــې شپونکی ښځه وادۀ کړه نو نفرت مې درځخه اوشو او ما وې چې دے هډو سړے نۀ دے. خو دا ښۀ اوشو چې خپله بله ښځه دې وادۀ کړه. په دې دې خوشحاله کړم ځکه چې دا زما د ورور ارمان وۀ.

شوکت: بابا زۀ ډېر شرمنده یم ماستاسو د مرضۍ نه خلاف کار کړے دے. بخښنه غواړم خو ستا سو دعا برکت وۀ کار د خېره اوشو. اجړه ډېره ښه ښځه ثابته شوه ګنې په اول کښې خو زۀ هم یرېدلے ووم. خو هغې داسې ژوند ما او پشمینې له راکړو چې مثال یې نشته. ځکه چې دا وادۀ صرف او صرف د هغې په زور اوشو. ګنې پشمینې هم نۀ غوښتله. اوس کۀ چرې واقعی تاسو مونږ ته معافی او.

بخښنه کوئ نو کور ته لاړ شئ دواړه ستاسو لوڼه دی او بخښنه ورته اوکړئ. دا به يو لوئے احسان وی.

خان کورته راغے. کثلوم او مور ئې پاسېدې. پشمينه هم په پټ مخ اودرېده او اجړه خو راغله نېغ په نېغه ئې په پښو پرېوتله. خان ئې په سر لاس راښکودلو او دا ئې اووې.

**خان:** اجړې تهٔ شپونکی نهٔ ئې اوس خو د دې کور عزت ئې. مونږ ته د دې علاقې خلق ځومره په درانهٔ نظر ګوری. دا به تاته د وخت تېرېدو سره معلومه شی. دا اوس ستا خپل عزت دے چې شوکت تهٔ خوښه کړې ئې نو زمونږ هم خوښه ئې، زما لور ئې د کلثوم خور ئې او د دې کور عزت ئې.

**اجړه:** بابا زما دې قسم وی چې په خپل شپونکی توب کښې به د دې کور د عزت د پاره خپلې وينې قربانوم.

**خان:** د پشمينې به هم ډېر خيال ساتې.

**اجړه:** دا مې ايمان دے چې د پشمينې به ډېر خيال ساتم پشمينه د خان ښځه او د ترهٔ لور ده زما خور ده. زهٔ به ورله مزدوری کوم او دا به د کور مېرمن ساتم. دعا کوئ چې خدائے زمونږ عزت نصيب کړی او مونږ ټول په يو بل خوشحاله شو. يقين ساتئ چې ستاسو هر يو ارمان به پوره شی. اګر کهٔ پکښې زما سر يا وينه لاړه شی هيڅ فکر مهٔ

کوئ.

د دې خبرې سره ټولو دعا اوکړه. خان رخصت شو او کلثوم ته مشر خان اووې.

خان: کلثوم! بچے تاسو به کله راځئ.

کلثوم: مونږ خو به دوه درې ورځې وروستو درځو کۀ خېر وی تاسو ځئ مونږ به پکښې د خپل ورور کور اووينو.

خان: ښه ده ښه تاسو پاتې شئ او مونږ لاړو.

دوئ د کور نه اووتل ځۀ لږ وخت پس غرهر شو او دوئ لاړل.

# دويم څرخ

شوکت نن بیا سحر وختی د کور نه کالج ته روان شو. لا وختی وۀ نو شوکت د ټائم د لنډولو د پاره د کالج په قبلیئز طرفته چمن کښې ډیر خوشحاله خوشحاله ګرځیدۀ ځکه چې پرون د هغۀ د یوې داسې پیغلې سره وادۀ اوشو چې د مړ ترۀ نصیحت. د پلار مطالبه د مور خوشحالی او د کلثوم ارمان وۀ. شوکت دغه خوشحالی په زړۀ کښې بار بار چنړوله. ناڅاپی چاچا ټوخے اوکړو. شوکت ورته اواز اوکړو.

**شوکت:** چاچا! اے چاچا!

**چاچا:** جی صیب! څۀ حکم دے؟

**شوکت:** حلیم صیب راغلے دے کنۀ تۀ ئې اوګوره.

**چاچا:** یره جی ګمان دے چې راغلے دے ځکه چې وختی مې په ګیټ کښې په راننوتو لیدلے وۀ.

**شوکت:** ډیر وختی راځی ګورے څۀ چل دے.

**چاچا:** هغه دے چې سګریټ ئې لګولے دے راروان دے.

حلیم د سګریټ نه یو اوږد کش اوویستو او چمن ته راغے څۀ چل دے شوکته ډیر تپوسونه نن کوې زما خو دې

نور شك پېدا كړو.

شوكت: سړے د هغه چا تپوس كوى چې څوك ئې خوښ وى.

حليم: منم منم. د زړۀ نه زړۀ ته ضرور لار وى.

شوكت: دا صرف خدائے ته معلومه ده.

حليم: زما هم دا مطلب دے ستا وينا ته څۀ حاجت نشته

شوكت: پرېږده اوس دا خبرې. د كالج د رسالې د شائع كولو څۀ پروګرام شته كنۀ.

حليم: زۀ څۀ ريډيو خو نۀ يم .

شوكت: شوقى خو ډېر يې.

حليم: او. شوق مې ډېر دے خو د بل په سر.

شوكت: څۀ مطلب؟

حليم: مطلب دا چې تۀ ئې اوليكې او زۀ ئې اولولم.

شوكت: خبر دا هم يو كمال دے.

حليم: اوهو يار. يوه خبره مې زړۀ كښې راغله.

شوكت: وايه كنۀ يار. د څۀ خبره؟

حليم: څه پرېږدوه اوس ئې نۀ شم كولے.

شوكت: اخر كنۀ يار زما خو دې لا په زړۀ كښې شك واچولو.

حليم: نانا د شك خبره نۀ ده خو......

شوكت: ذا خو پكښې لا څۀ دے؟

حليم: دا د يوې داسې مجبورۍ لفظ دے چې

سړے یو کار نۀ شي کولے یا یوه خبره نۀ شی کولے نو د هغې نه د خلاصی د پاره استعمال شی.

شوکت: اوهو یار یو خو تۀ عجیبه سړے ئې تاته اخر څۀ مجبوری وړاندې راغله.

حلیم: تۀ اوس ما مۀ تنګوه خو خبره ده یا ما کړې او یا بل چا ضرور به درته اوشی.

شوکت: زۀ د بل چانه دا خبره اوریدل نۀ غواړم.

حلیم: هم دغه خبره ده. کۀ زۀ ئې اوکړم نو څۀ خیر به درته حاصل شی او کۀ بل ئې اوکړی څۀ نقصان به اومومې.

شوکت: د خیر او د فساد خبرې نۀ اورم هم دغه خبره اورم کومه چې دې زړۀ کښې راغلې ده.

حلیم: زۀ ئې درته نۀ شم کولے شوکته.

شوکت: حلیمه!
کۀ تا دا خبره اونۀ کړه نو زۀ به قسم اوکړم چې بیا به کالج ته نۀ راځم.

حلیم: نانانا. ظالمه تۀ خو ډیر زر بلش کیږې دا خو ما تاسره هسې پراډ کولو.

شوکت: دا فسټ اپریل نۀ دے ماته صحی خبره اوکړه ګنې نن هم دا پیریډونه نۀ اخلم.

حلیم: خبره دا ده کنۀ چې پرون ستا وادۀ ښۀ د شریعت مطابق په دهوم دهام سره اوشو. تاته پرې هم

خوشحالي حاصله شوه ستا مور پلار ته هم، خپلو خپلوانو ته هم او د کالج پروفېسرانو تـه سره د پرنسپل هم ډېره خوشحالي اورسېده خو ستا نه پکښې ظفرصېب جوړ هېر شوے وۀ. هغۀ ډېره ګیله ظاهره کړې ده. چې اخر شوکت غوندې سړی بې زمانه داسې ولې اوکړو.

شوکت: تۀ څۀ خبر ئې حلیم صېب په هغه پسې ما درې ځله نوکر لېږلے وۀ او په څلورم ځل پسې پخپله لاړم نو خبر شوم چې هغه ښکار ته تلے دے. ما د هغوئ کور کښې د خپل لاس لیکلے کاغذ ورکړو چې دا به ظفر صېب لـه ورکړئ. هر وخت چې راغے او ما ورته پکښې اولیکل چې.

خوږه او زړۀ ته نزدې ظفره السلام علیکم. نن زۀ په تاپسې راغلے ووم دې د پاره چې نن زما د خپلې ترۀ لور سره وادۀ دے خو افسوس چې تۀ کور نۀ وې او ښکار ته وتے وې. مهرباني اوکړه هر ټائم چې را اورسېدې نو د کالج کوارټر نمبر ۱۲ ته ځان را اورسوه ماتاسو پروفېسرانو له د ساده روټۍ پروګرام کړے دے. تۀ ځان ضرور را اورسوه.

فقط

ستا مخلص

شوکت

اوس ته اووایه حلیمه! په دې کښې زما څهٔ قصور دے.

حلیم: دا خو واقعی ستا غلطی نهٔ ده.

شوکت: تهٔ به هغه لږ په اندازه پوهه کړې چې شوکت خو درغلے وهٔ او ستاسو په کور کښې ستا د پاره خط هم پرېښودلے وهٔ. کېدے شی چې د کور والو زما خط بالکل د فکر نه وتلے وی او هغهٔ له ئې نهٔ وی ورکړے. او زما سوال جواب ئې ورته هم نهٔ وی رسولی.

حلیم: ښه ده نو زهٔ به هغه پوهه او دا ګیله به ئې د زړهٔ نه اوباسم.

شوکت: د هغهٔ خو به دا مطلب وهٔ چې د شوکت وادهٔ اوشو او زهٔ پکښې یاد نهٔ شوم. ګنې ډوډۍ خو به زهٔ بیا بیا اوکړم.

او نو اصلی خبره هم دغه ده خو خېر څه تهٔ فکر مهٔ کوه.

دوئ لا په دې خبرو کښې مشغوله وو چې د کالج تلې اووهلے شوه. سټوډنټان خپلو خپلو کلاسونو ته لاړل او داسې لیکچراران، حلیم شوکت ته اووې.

شوکته! ستا پیرډ جوړ خالی دے؟

شوکت: او او زما پیرډ خالی دے.

حلیم: ښه ده نو تهٔ کښېنه او زهٔ ورځم چې خپل پیرډ واخلم.

شوکت: څه ورشه خو ظفر صیب ضرور د حالاتو نه

اګاه کړه.

حليم صيب کلاس ته لاړو. چاچا د شوکت په خوا کښې يو شيبه غلے ناست وۀ. خو بيا ئې شوکت ته اووې.

**چاچا:** يره جی ظفر صيب به واقعی د دې نه نۀ وۀ خبر شوے چې شوکت په ما پسې راغلے وۀ. ځکه چې هغۀ زما دلته د راتلو نه مخکښې ماته اووې چې شوکت صيب خو به کاغذ ليکلے وۀ کنۀ. د راتلو او نۀ راتلو بيا زما خپله مرضی وه چې په څۀ راته ځان ښۀ ښکارېدے هغه به مې کړی وو.

**شوکت:** په رشتيا چاچا. دا خو ډېر ښۀ اوشو چې زۀ د ملامتې نه خلاص شوم. ما خو لا وې چې زۀ به ورته ګيله کوم چې په ما کښې اخر څۀ بد وو چې تۀ زما ډوډۍ له رانۀ غلې.

**چاچا:** صيبه. تاسو کښېنئ زۀ ورځم چې لرې اوبۀ راوړم او نور څۀ کار اوکړم.

**شوکت:** ځه چاچا ورشه.

شوکت يو ائې ناست وۀ چې په دې کښې يو بوډا ډاکی خطونه په لاس کښې نيولی شوکت له راغے او يو خط ئې ورله ورکړو شوکت ورته اووې.

ډاکی کاکا د چا خط دے؟

**ډاکی:** يره دا خو به تاسو ته پته وی.

شوکت: او نو تا خو سپړدلے نۀ شو.

ډاکې: او کنۀ جی زما ذمه واری خو خطونه راوړل دی.

شوکت: ښه بس ټهیك ده.

شـــوکت خــط اوســـپړدلو او زر زر ئـــې پـــرې نظـــر اوزغلولو چې د چا خط دے چې وئې کتل نو.

ګرانه او زړۀ ته نزدې شوکته د غمه په ارام اوسې.

السلام علیکم!

زما خو دا خیال ؤو چې لکه د پخوا غوندې درته په خط کښې ازادې خبرې اولیکم. او درته د هغې اول خط په شان یو ذوه شعرونه هم اولیکم. لیکن اراده مې بدله کړه. ځکه چې اوس زما داحق نۀ دے چې د خط په سرنامه درته شعرونه اولیکم. موسم ډېر ښکلے دے کېدے شی چې ستاسو طرفته موسم یخ کېدونکے وی. دلته خو د موسم عجیبه دوران دے شین والے او خوړوالے دے زړۀ مې غواړی چې د افسانې یو پوره داستان درته اولیکم خو ستا وخت خرابول نۀ غواړم ځکه چې ځوك نۀ خوښوی نو خبرې به ئې ځنګه خوښې کړی. خو بیا هم د ځنې سړی تنګولو کښې مزه وی. خدائے دې روغ لره او امید دے چې روغ جوړ به ئې.

هن نو د موسم په حقله مې درته لیکلو ډېر ښائسته

موسم دے. بنګلې هواګانې الوځی هر خوا ګلونه دی چمنونه دی. جنتونه دی خوشحالۍ دی خو بیا هم کله ناکله غمونه چپې اوکړی.

شوکته ستا بدلی به لا نهٔ وی شوی او زما بدلی د خپل علاقې نزدیك ترین کالج ته اوشوه خیال مې دا وهٔ چې تا د خط په ذریعه خبر کړم. کهٔ چرې بده نهٔ ګڼې او د خط لیکلو تکلیف کوې نو پته خو به درته معلومه وی کنهٔ.

بل به تاته د خط راتلو واقعه هم بیان کړم. هر کله چې ستا خط راغے نو زما ملګرې یاسمین هم ما سره ناسته وه. ورته مې ستا خط اولوستلو هغې اووې.

**یاسمین:** ګوره فرزانې دا خو ډېر بې وفا وهٔ.

**فرزانه:** نا یاسمین بې وفا خو ځکه نهٔ وهٔ چې هغهٔ مخکښې ماته وئیلی وو چې دوستی جدا څیز دے او د ژوند ملګرتیا جدا.

**یاسمین:** زما خو دا یقین وهٔ چې ستا او د شوکت وادهٔ به ضرور کېږی.

**فرزانه:** دا د تقدیر فېصله ده یاسمین.

**یاسمین:** تقدیر خو کته کړے خر دے چې په کومه ئې بوځې نو ځی.

**فرزانه:** دا د هر سړی خپله مرضی وی.

لنډه دا چې زما او د هغې تر مینځه ډېر زوږ شور

اوشو. هغې به ستا د بې وفايۍ بحث کولو او ما به ستا د مجبورۍ ذکر کولو. خو چې کله دا خبره مخې ته راغله چې ته په اجړې جينۍ مئين شوے يې. او د پلار د مرضۍ نه خلاف دې د هغې سره وادهٔ اوکړو نو د ياسمين په مخکښې ډېره کوز سترګې شوم. او هغې زر پېغور راکړو.

**ياسمين:** دغه دے نو اوګوره تاته ما نهٔ وې چې تقدير کته کړے خر دے.

**فرزانه:** دا هم په تقدير کښې ليک وو ګنې د هغهٔ نه دا توقع نهٔ شوه کېدے. ځکه چې په ذهن کښې ئې دا خبره د اول نه نهٔ وه ولنې چې د هغهٔ پلار هغهٔ له په وړوکوالی کوېژدن کړې وه. او خپله ورېره ئې ورله غوښتلې وه. دوئم وادهٔ به ئې څنګه کړے وهٔ.

**ياسمين:** ټول خلق دوه، دوه ودونه نهٔ کوی څهٔ.

**فرزانه:** هغه وخت تلے دے او بيا شوکت خو ډېر هوښيار سړے دے.

خو کله چې هغې په خط کښې د دوو ودونو اوليدل نو لا مې سترګې ښکته شوې او راته يې په غټ اواز اووې.

**ياسمين:** څنګه دے مانهٔ وې چې پښتون سړے دے هغهٔ له څهٔ ډب پښتانهٔ په دې نهٔ دی کهٔ دوه اوکړو او کهٔ ځلور، تعليم د هغوئ مزاج نهٔ شی بدلولے.

**فرزانه:** دا به هم د هغهٔ مجبوری وه ياسمين.

**یاسمین:** دا مجبوري دې لا ورکه شي يو سړے په خپله مرضي کوي او د بل د پاره مجبوره شي.

**فرزانه:** ما د هغۀ سره د وادۀ کولو وعده نۀ وه کړې.

**یاسمین:** اراده خو د دواړو وه.

**فرزانه:** په اراده هیڅ نۀ کېږي چې تر څو وعده نۀ وي شوی.

خبر دا هم ډېر بحث وۀ او ختم شۀ. خو بیا هم تا ښۀ اوکړل چې په خط کښې دې پوره تفصیل لیکلے وۀ. زۀ ډېره شکریه ادا کوم ځکه چې زما خو دا خیال وو چې شوکت به زما سره وادۀ کوي. ستا د پښتونوالی په غېرت تاله مبارکی درکوم. چې تا په ډاګه خپله فېصله اوکړه او زۀ دې ښه په وخت خبر کړم. کله چې ستا خط راغے نو د دغې لږ ساعت پس زما د کلي وال دوست حسین خط هم راغے چې مې اوسپړدلو نو پکښې د رشیتنې محبت ذکر وۀ او دا شان یې لیکلي وو چې.

زما د زړۀ او سترګو توره فرزانې په عزت اوسې.

السلام علیکم!

خیال کښې مې راشي چې هر هغۀ څۀ اولیکم چې مې په زړۀ کښې دي خو افسوس چې جرات نۀ شم کولے کاش چې تۀ د دې نه خبر وے چې زۀ تا څومره خوښوم خو ماته دا پته ده چې تۀ شوکت خوښوې زۀ ستا او د شوکت په لاره

کښي اودرېدل نۀ غواړم. ځکه چې دا د خپلې مرضۍ خبره ده نۀ چې د مجبورۍ. بلکې شریعت هم هرې پېغلې او زلمی ته د خپلې خوښې په وادۀ کولو اجازت ورکړے دے. خو بیا هم د خپل زړۀ اظهار په لنډو الفاظو کښې کوم. او هغه دا چې زما په زړۀ کښې چې ستا د پاره څومره مینه ده شاید دومره به د شوکت په زړۀ کښې نۀ وی. کۀ چرې ستا او د شوکت تر مینځه وادۀ اونۀ شو نو زۀ حاضر یم.

امید لرم چې ما به رد نۀ کړې.

والسلام

ستا خېر اندېش او خوښونکے

حسین

ستا د خط پوره پوره حال خو راته معلوم شو. هسې مې جذبه زړۀ کښې راغلې وه. نو زر مې قلم کاغذ رااخستل او په منډه منډه مې هغه ته خط اولیکلو.

محترمه حسین صېب خوشحاله اوسې.

السلام علیکم!

ستا راغلے خط ما اولوستلو او دا دے اوس جواب لیکم. خو زیات تفصیل نۀ شم لیکلے ځکه چې زما او ستا د خطونو یو بل سره ازادی نشته. البته د کومې خبرې ذکر چې تاسو په خط کښې کړے دے د هغې امکان شته ولې چې اوس اوس د شوکت خط راغے او زۀ ئې د خپلې مرضۍ د

وادۀ کولو نه خبر کړم. چونکې ستا ډېر خواهش دے او دا ماته د کالج په وخت کښې هم پته لګېدلې وه چې تۀ ما ځومره خوښوې. نو د دې وجې درته زۀ خوشخبری درکوم چې زما او ستاسو وادۀ به اوشی. تاسو زما د پلار سره رابطه قایمه کړئ.

والسلام

ستاسو فرزانه

خط مې بند کړو او لږې ورځې پس هغۀ زما د پلار سره خبره اوکړه. چونکې زما خو هسې هم رضا وه ځکه چې ستا نه وروستو حسین زما په خوښوونکو هلکانو کښې وۀ. او په یو ډېر ساده پروګرام کښې وادۀ اوشو. امید دے تۀ به خوشحاله ئې. هیله لرم چې کۀ چرې چتهیانې اوشی نو زۀ او حسین به ستاسو ځائے ته ضرور درشو.

دلته بالکل خیریت دے او الله تعالی دې تا په خیریت او خوشحاله لری. اګر چې د دوو ښځو خاوندان ډېر کم خوشحاله وی. خو زما دا توقع ده چې تۀ به خپل ژوند ډېر ښۀ تېر کړې.

والسلام

ستا خېر خواه ملګرې

فرزانه

شوکت خط بند کړو. لفافه ئې په جېب کښې

کنبېبنو دله. یو څو لحظې وروسته ئې د ټلی اواز تر غوږو شو. کلاس ته روان شو چې خپل پیرډ واخلی.

# یو څو غزې

د ماسختن وخت دے. خلق د ځملاستو پروګرام جوړوی. پشمینه د شوکت په خدمت کښې مصروفه ده. اجړه اوزګاره وه. نو مصری جان ته ئې غږ اوکړو.

**اجړه:** مصری جان ترور یا مصری جان ترور راځه تۀ لږه خو کښېنه. داسې سترے ستومانه کار دے چې نااشنا.

**مصری جان:** بی بی اوس به خفه شې کنۀ هر څۀ به مې وئیلی وو.

**اجړه:** هډو خلۀ مۀ نیسه ازاده خبره کوه ازاده.

**مصری جان:** هر څۀ چې وی خو دا د کلو خلق ډېر ښۀ خلق دے.

**اجړه:** څۀ مطلب ترور! زۀ پوهه نۀ شوم. څۀ ګناه خو خې نۀ ده کړے کنۀ.

**مصری جان:** نانا خدائے دې نۀ کړی خو هسې متل دے وایی چې د غرۀ عالم نۀ عالم.

**اجړه:** (په ژړغونی اواز)

ترور دا هر څۀ خو تۀ ماته وائې. تاته څۀ پته ده چې د غرۀ خلق ښه خلق نۀ دی؟ بیا خو په ډاګه خبره ده چې پشمینه زما نه ښۀ ده.

مصری جان: ماتاته نۀ وو وئیلی چې اوس به خفه شې ګنی نو.......

اجړه: کۀ نور هم څۀ وائې. نو ئیلے شې. په زړۀ دې زنګ مۀ پرېږده.

مصری جان: کله چې ستا رنګ او خوئ خصلت ته اوګورم نو حېرانه شم.

اجړه: عجیبه خبره ده کله وائې چې د غرۀ عالم نۀ عالم او کله چې زما خوئ ته اوګورې نو حېرانه شې. دا تۀ څۀ وائې. ترور یا خو زۀ نۀ پوهېږم. ما پوهه کړه ترور ما پوهه کړه.

مصری جان: اول اول چې تۀ دې کورته راغلې نو سترګې دې بدلې وې. او راته داسې ښکارېدې لکه چې یو غل سړے د چا کورته د غلا دپاره په څۀ بهانه راغلے وی او یا د یو قاتل د بدلې اخستلو د پاره رادننه شوے وی او په دوکه اوسېدل غواړی.

د دې خبرې سره د اجړې مری اوچه شوه غریب اونیوله. رنګ ئې زیړ شو. او وارخطا غوندې ئې اووې

اجړه: ترور تۀ خو عجیبه غوندې خبرې کوې. لکه د

لېونو غوندې. یا خو درته زهٔ کم عقله ښکارېږم او یا په خپله ډېره ناپوهه ښځه ئې.

مصری جان: معافی غواړم بی بی اول مې درته وئیلی وو. چې خفه به شې خو تا اووئیل چې نهٔ خفه کېږم چې اوس مې په ډاګه وئیل شروع کړل نو تندے دې غوټه شو لا خو مې نور څهٔ نهٔ دی وئیلی.

اجړه: نور به لا څهٔ وے ترور. د دې نه زیات نور څهٔ کېدے شی. خو ښه ده زهٔ به غلې شم او دا فېصله به خان ته پرېږدم.

مصری جان: نا بی بی نا. دا غلطی چرته اونهٔ کړې. خان کهٔ ستا خاوند دے خو زما زوے ولې چې هغه زما په لاس کښې شوے دے. دا غلط خیالونه د زړهٔ اوباسه. هسې نهٔ چې زما په وجه تا خفه کړی.

اجړه: ترور معافی غواړم چې تهٔ د خان مور ئې نو زما خوابښې ئې او انګور له پکار دی چې د خپلې خوابښې سره دومره چېړ اونهٔ کړی. وئ څم چې چائے درله پوخ کړم. ټوله ورځ دې کار روزګار کړے دے.

مصری جان: نانابی بی. چائے نهٔ څښم دلته خو هسې هم زما روح خوشحاله دے زما دا کور زما خپل کور دے. او په خپل کار هیڅوک نهٔ ستړی کېږی. ترڅو چې یو سړے داسې کور خپل کور نهٔ ګنی. نو د کور ټول لوخی لرګی ورته لکه د

دشمن ښکاریږی او ما خو د راتلو سره دلته ډېر اچولي دی. هر کله چې يوه ښځه يو کورته په ځانګو کښې راشی نو د دغې کور عزت او بې عزتی د هغې سره اوتړلے شی.

اجړه: منم ترور منم. اول اول خو واقعی د دې کور لوښی لرګی، نارینه زنانه ماته لکه د دشمن ښکاریدل. او دا مې هډو ګنړل نۀ چې دا کور لا زما خپل کور دے. ما خو دا ګنړل چې پشمینه د خان د ترۀ لور ده او دوئ ټول د دې کور حقداره هغه ګنړی. کۀ چرې خان نۀ وی نو بیا زما په دې کور کښې هیڅ هم نشته.

مصری جان: خدائے دې داسې اونۀ کړی لکه چې تۀ وائې. څنګه چې د دې کور عزت ستا عزت دے داسې ستا عزت د دې کور عزت دے. مونږ د خدائے يو شان بنديان يو. څۀ اوشو کۀ څوك په غرونو کښې اوسی او څوك په کلو. او بیا د غرونو خلق خو ډېر ښۀ او ساده خلق وی په دوکو شوکو نۀ پوهیږی.

اجړه: نو د کلو خلق دوکې باز وی څۀ د دې نه څۀ مطلب بیا خو...

مصری جان: نانا دا مې مطلب نۀ دے ځنې خلق په کلو کښې ښۀ وی او ځنې په غرونو کښې لکه پشمینه بی بی په کلی والو ښځو کښې او تۀ په غرئیزو ښځو کښې خپل خپل ثانی نۀ لرئ.

اجړه: خا اوس پوهه شوم لکه د خپل زوئ دواړه ښحې درته د هر چا نه ښې ښکاري.

مصری جان: نو ولې ستا څۀ مطلب دے کۀ نور خلق د سروزرو شی نو زۀ پرې څۀ کوم. په دې کښې پشمینه رابهر شوه. اواز ئې اوکړو

پشمینه: اجړې ډېر ناوخته دے ووده کېږې نۀ کۀ په غېږ د خان درله خوب نۀ درځی.

اجړه: پرېږده مرې ستا هم راپورې ملنډې کېږی. تاله کۀ څۀ د هغۀ په خوا کښې خوب نۀ درځی ځکه.

مصری جان: دواړه یو بل ته د زړونو حالونه اووایئ کنۀ. زما خو یو زوے دے د هغۀ د سترګو نه زار شم.

اجړه: ترور تۀ نۀ ئې خبر اوګوره تۀ نیمه شپه خوب ئې اوکړو هیله اوس پوهه شوه چې ناوخته دے.

پشمینه: (په خندا غوندې)

خوب دې رابانـدې حرام وی. خان کتاب ګوری او ما هغه کېږې تیاروله. ستا جوړه تیاره شوه او زما هغه تیارېدونکې ده.

اجړه: څۀ داسې د تادی خبره خو نۀ وه. خوب به دې کړے وۀ. نیمه شپه ده.

مصری جان: او کنۀ بی بی اجړه ښه وائی.

د دې خبرې سره پشمینه په خندا شوه او کمرې ته

لاړه او اجړه د ترور سره پاتې شوه

**اجړه:** ترور ژوند رنګ رنګ تېرېږی د چا په تقدیر کښې د ماښام تیارهٔ رڼا شی او د چا د قسمته سره غرمه تیارهٔ شی. څهٔ دې خیال د ے.

**مصری جان:** او نو د خپل تقدیر خبرې کوې څکه چې تور ماښام ستا د تقدیر ځلېدونکې غرمه شوه. خان د کومې په چکر کښې درغلو تهٔ یې اولیدې او خوښه ئې کړې. پرېږده پرېږده خو زمونږ د بدقسمتو سپین سرو قسمتونه چې غرمې راباندې تېرې شوې.

**اجړه:** هغه څنګه ترور پوهه نهٔ شوم.

**مصری جان:** (یو سوړ اسویلے اوکړی)

اجړې! تهٔ به لا پېدا هم نهٔ وې دا ستا غوندې مونږ هم ځوانئ تېرې کړې دی. زهٔ د نن نه د بېرش کاله مخکښې دې کورته راغلې یم. لا جینئ ووم.

دلته په دې کور کښې مې سر سپین شو.

**اجړه:** نو ولې راتلې. تهٔ څهٔ خاص واقعې دلته په راتلو مجبوره کړې.

**مصری جان:** ښه ده نو غوږ کېږده.

د بېرش کاله مخکښې خبره ده. زهٔ د خپل کلی په جینکو کښې یو ازاد خیاله جینئ ووم. نهٔ مې ورور لرلو او نهٔ بله خور پلار مې زما په وړوکوالی مړ شو. او چې لږه

لویه شوم نو مور مې هم په حق اورسېده. زمونږ په ګاونډ کښې زما ماما اوسېدۀ زۀ د هغوئ کره لاړم. کاروبار به مې کولو لکه څنګه چې د خپل کور استوګنه وی. ځکه چې ماما مې لکه د پلار غوندې او مامې مې راله د مور مینه راکړه.

یوه غرمه د سپرلی ښکلې او رنګینه غرمه چې نۀ هېرېدونکې غرمه وه. زۀ ساګو شوکولو له پټی ته اووتم. ما د ساګو پنډوکے پوره کړو او د شا د طرفنه راته چا اواز اوکړو.

اے جینۍ اے جینۍ دا ساګ ولې شوکوې چې ما شاته اوکتل نو یو زلمے ولاړ وۀ په غوږ کښې ئې د شړشمو ګلونه ایښی وو. او په لاس کښې ئې د ربړ لینده وه. خو ما غږ اونۀ کړو. نو دۀ بیا په زوره دا اواز اوکړو. اے جینۍ اے لرې کېږې نۀ دا پردی پټی درته خپل ښکارېږی کۀ لرې شه ګنې لینده دربانده‌ې راکاږم. او سابۀ به درنه واخلم ګورے. زۀ غلې غوندې پاسېدم او د کور مخه مې اونیوله. دے زما مخې ته ولاړو چې زۀ رانزدې شوم نو دۀ اووې. وی دا خو مصری جان ده. مصری جان تۀ شوکوه ستا خو هډو پټے نشته. ځنې خلق داسې وی چې خپل پټی ئې وی خو پردی سابه شوکوی. څه څه تۀ څه شوکوه.

**مصری جان:** تا زۀ څنګه اوپېژندم چې زۀ اسرو یم او بیا د دومره همدردۍ کوم ضرورت دے.

فضلې: اسرو! زما نوم فضلې دے. زۀ تا د ډېر وړوکوالی نه پېژنم. خو زۀ دا نۀ غواړم چې تش تاته د خپل زړۀ اظهار اوکړم. افسوس چې تۀ زما د زړۀ نه خبر وے چې زما په زړۀ کښې ستا د پاره څومره مینه او محبت دے. خدائے دې کړی چې زما د زړۀ دا خواهش پوره شی.

مصری جان: (په قهر غوندې)

وئ دا تۀ څۀ وے پردے هلك او د پردی جینۍ سره داسې خبرې. شرمېږې نۀ. زۀ به خپل ماما ته اووایم ګورے.

فضلې: مصری جان! د دې غم راسره نشته. تۀ خپل ماما ته مۀ وایه زۀ به ورته اووایم چې مصری جان زما خوښه ده ماله ئې راکړه کېدے شی چې هغه زما دا سوال اومنی.

د دې خبرې سره ما هم اوچت اوکتل او واقعی د زړۀ نه زړۀ ته نرۍ غوندې لار وی. ځنګه چې د فضلی زۀ خوښه وم هم داسې فضلې زما خوښ شو. ما په شرمېدونکی اواز اووې. زۀ څۀ داسې اوخکلې اوګه خو نۀ یم چې زما ماما به ستا په وینا ما تاله درکړی. خو هغۀ راته په جواب کښې اووې. چې زما په خدائے یقینٙ دے مصری جان چې هغه به زما سوال ضرور منی.

د دې سره زۀ رارخصت شوم کورته راغلم مامی ته مې سابۀ اوغورځول هغې رانه سابه واخستل خو زما زړۀ په قلاره نۀ وۀ. ځکه چې فضلې به مې بار بار په خیالونو

اوړېدو را اوړېدو. زۀ په تصور کښې ناسته ووم چې په دې کښې د بهر نه چا اواز اوکړو.

چې ماما اے ماما تۀ بهر شه لږ.

زما ماما خو بهر شو لیکن زما زړۀ درزېدۀ کېدے شی چې د فضلی څوك راغلی وی. زما مامی ماته اووې ورشه تۀ اسرو چې څوك دی. ستا ماما ته څۀ وائی. زۀ وراغلم غوږ مې کېښودلو نو د فضلی پلار زما د ماماسره دا خبره کوله.

فضلی پلار: یره وروره څۀ به ئې وے دا اوسنے اولاد هم څۀ عجیبه غوندې دے. نن فضلے راغے وې چې د ماما خورزه ماله اوغواړه. ما وې ورشم چې کۀ چا سره یې لوظ نۀ وی کړے نو وینا به ورته اوکړم. باقی خوښه د هغۀ ده.

ماما: دا خو دې وروره په ما احسان دے فضلے خو ډېر ښۀ هلك دے او ډېر ښۀ خوئ ئې دے. زما خورزه پردے امانت دے چې په حیا زما د کوره لاړه شی نو خدائے ته به مې سر اوچت شی. هډو د دوباره راتلو ضرورت نشته. مصری جان ستا لور ده. مبارك دې شه مبارك او هن تکلیف هم مۀ کوئ. مونږ غریبانان یو د خپل غریبوالی کار به کوو.

زۀ رادننه شوم او سمدستی راپسې ماما رادننه شو. مامی ته یې په زوره اواز اوکړو جینئ اے جینئ. زما مامی ورته هاو اوکړو او ماما مې ورته په زوره اووې جینئ

مصری جان مې فضلی له ورکړه.

مامی: وئ دا څۀ څاروے وۀ چې داسې دې ُخرڅه کړه نۀ سوچ نۀ فکر نۀ تپوس هائې الله خلق به وائی چې داسې پرې خورزه پېټے وۀ. ارتاؤیې کړو بد دې اوکړو ورکړې به دې وه خو په قلاره.

ماما: نۀ جینی ډېر ښۀ مې اوکړو. په کور کښې مې زوے نشته ګنی مصری جان به ولې بهرته وتله. پېغله جینۍ ده لور خور چې د کوره په حیا رخصت شی نو لا د خدائے غنیمت ګڼه. ډېر ښۀ اوشو فضلے ډېر ښۀ هلك دے.

او دغه شان شپې ورځې په مینځ کښې تېرې شوې اجړې! سر به دې څۀ خوږوم خو زما د وادۀ پروګرام جوړ شو. مونږ ټول په دې خوشحاله وو. او ماما خو مې ډېر زیات خوشحاله وۀ. وې چې خورزه مې په ښۀ ځائے کښې ورکړه زۀ او فضلے په دې خوشحاله وو چې د یو بل خوښ وو. د وادۀ ورځې رالنډې شوې د فضلی دلې د کور نه به د ډمامو اوازونه راتلل. کله نا کله په مې ځاروی په کوځه بوتلل. نو غاړه به یې تازه کړه. خو ما به ځان ناغرضه کړو. دا مې خیال وۀ چې د پښتنو په رواج کښې دا یوه بده خبره ده.

اجړې پښه کټ ته اوچته کړه غاړه یې تازه کړه. ترور تا بارې هم مینه لیدلې ده او کړې ده.

مصری جان: دا پېغلتوب یو اځې په تا خو نۀ دے راغلے.

دا مونږ هم لیدلے دے اوس چې زما دا سپین ویښته وینې دا هم د چا د مینې زلفې وې. هر څوك په خپل خپل ځائے وی او خپله مینه لری.

**اجړه:** ښه څه اوس قیصه کوه.

**مصری جان:** ښه خو څۀ مې وې؟ هن نو وادۀ رانزدې شو فضلے د پلار په وینا لاړ شو چې خاروے راولی دې د پاره چې د وادۀ غله پخه کړی. د چم ګاونډ د ډوډۍ بندوبست اوکړی. ګرمه ګرمه جوړه شوې وه. زۀ وایم چې فضلے به ډومره خوشحاله وۀ. ځکه چې د هغۀ مینه هغۀ ته په لاس ورتلونکې وه. خاروے میرات شوے په لاره د چا فصل ته واوړېدۀ. دۀ ورته یو څو غرګی ګذار کړل خو خاروے واپس نۀ شو او په دې کښې د پټی خاونزے راغے او قهر شو چې ړوند یې کۀ نظر دې نۀ لګی چې دا پردی فصلونه خوروې.

**فضلے:** وروره قهرېږه مۀ هسې اوړېدلے دے. دا دې را اوباسم ئې چې څۀ یې خوړلی وی نو تاوان به درکړم د هغې.

**پټی خاونزے:** پوهه شوے یم دربانده دې مصری جان دې غوښتلې ده نو مست شوے ئې. تۀ خبر نۀ ئې چې مصری جان زما خوښه ده. هغه زۀ خپله ګنړم هیچا له ئې نۀ ورکوم او دا ستا خیالونه ټول غلط دی چې هغه به لا ستا شی.

فضلے حیران غوندې شو او وارخطائې د خلې نه

اووتل چې دا څۀ وے ښځیه.

ښځے: هم دغه وایم اودرېږه چې غور دې او کړم.

اجړې دا زما د ژوند يوه بله غرمه وه چې ډېره ناپاکه ثابته شوه ځکه چې د غرمې وخت وۀ. نو ښځې غرګۍ ته لاس کړو او فضلے ئې رسا په سر اوویشتلو. هلك وۀ طاقتور او هيڅ بې هیڅه ئې شهید کړو. ناڅاپې چغې کوکارې شوې چې فضلے ښځې مړ کړو. مونږ معلومات اوکړل چې څۀ وجه ده چې داسې غم او ماتم شو. د فضلی مور پلار راغلل او زما ماما ته ئې ډېرې بدې ردې اووې. چې ستا خورزه په ښځې مئينه وه نو بيا ئې فضلے څۀ له خوښوو.

ماما: دا څۀ وایئ هغه خو د پټې په لانجه کونجه کښې مړ شوے دے.

خبر د فضلی پلار ټوله قيصه تېره کړه او دا ئې اووې چې اوس ښځے وائی چې مصری جان به زما سره وادۀ کوی. زما ماما ما ته اوکتل.

ما روغوندې سترګې ښکته کړې. او بيا مې اووې چې زما دې په خدائے قسم وی چې ما د وادۀ خبره بغېر د فضلی نه د بل هيچا سره نۀ ده کړې. او نۀ مې تر اوسه ښځے ليدلے دے. البته اوربدلی مې دی چې ډېر ناکاره هلك دے. خو ښه ده چې تاسو وایئ نو زۀ په زهر اوخورم او ځان به مړ کړم.

**ماما:** د دنیا یو طاقت تا د دې ځائے نه په زور نۀ شي بوتلے پاتې د فضلی د پلار اعتراض شو. نو خبر دوئ ته صدمه رسېدلې ده. مونږ به هیڅ نۀ وایو. غلی به شو.

**د فضلی پلار:** نانانا په خوږو پستو کار نۀ کېږی. ښه به دا وی چې مصری جان یا ځان مړ کړی او یا د دې کلی نه پناه شی.

زما ماما په قهر اووې دا ستا فیصله نۀ ده مصری جان زما لوږ ده د دې واك زما دے. خبر شپه تېره شوه سبا شو او دغه شان یوه بله غرمه راغله. ما ټوله شپه سوچ کړے وۀ چې کۀ ځان مړ کړم نو خلق به څۀ وائی او بله دا چې مرګ راته ګران هم ښکارېدۀ غرمه ګېر چاپېره مې په کور کښې اوکتل نو مامی مې ووده وه خبر مامی مې ووده پرېښوده او څادر مې په سر کړو د کور نه را اووتلم چې د بنی د سترګو نه لرې لاړه شم. په منډه منډه ستړې ستومانه مې ځان دې کلی ته را اورسولو د یو وړوکی نه مې تپوس اوکړو چې د شپې ځائے به دلته وی کنۀ. هغۀ راته د دې خانانو کور برابر کړو او زۀ وراغلم. شپه مې سبا کړه او د سحر د چائے نه وروستو مې د شوکت مور ته اووې چې بی بی الله مو خوشحاله کړه زۀ لاړم.

**بی بی:** اے جینی!

چرته ځې کۀ چرې د چا کره کښېنې نو دا دې خپل کور

دے زمونږ کره هسې هم د کار څوك نشته دننه به نې

ماته خو هسې هم ضرورت وۀ پښې مې ستې کړې او پاتې شوم او دا ټوله قيصه مې د شوکت مور ته بيان کړه. دا مې خيال وو چې کۀ چرې بنې راشي او زما د بوتلو کوشش کوی نو دوئ ته خو به معلومات وی کنۀ. نو هغې راله ښه تسلی راکړه. او ما د کور کاروبار شروع کړو. درې څلور کاله مې تېر کړل دوئ لکه د بچی اوساتلم. شوکت مې په لاس کښې اوشو. دوۀ دوه نيم کاله وروستو مې پشمينه بی بی لاس کښې اوشوه او ډېره ښه ګذاره مې کېدله خو کله نا کله به راته د خپل تقدير بد لېدونکې غرمې رايادېدی. څلور پينځۀ کاله وروستو يوه بله غرمه داسې راغله چې ما ډوډۍ پخې کړې دی بلنه ملنه شوې ده. بی بی وودہ وه. او کلثوم او شوکت ورسره په خواکښې پراتۀ دی. ګرمی ده. د ونې د سيورې د لاندې ئې کټ سم کړے دے. زۀ هم راغلم او په يو کټ کښې څملاستم.

ناڅاپې بهر دروازه اوډبېده او غږ اوشو چې خدائے مو اوبخښه مسافر يم ډوډۍ راوړئ. زۀ زر پاسېدم د شکور نه مې ډوډۍ راوړه چې بهر اووتم نو يو تکړه ځوانور شپونکے ولاړ دے. پتاوې ئې د پښو نه تاؤ کړې دی او تبرګۍ ئې په اوږه ده.

اجړې زر خبره پرېکړه ترور تا ترې د نوم تپوس نۀ وۀ

کړے چې څوك وۀ

مصری جان: ما څه میرات کړے وۀ. په هغۀ خدائے د ځمکې اسمان تندر راخلاص کړو. چې ما ډوډۍ ورکړه نو روغونډې ئې اووې اے جینۍ اینګولے خو به نۀ وی. ما ورته اووې ځم چې درله راوړم. نو بیا ئې غږ اوکړو.

شپونکے: اودرېږه دومره تادۍ ته څۀ ضرورت دے. د چا کور دے او تۀ پکښې څۀ کوې.

مصری جان: ستا څۀ کار دے وږناریه خو ډوډۍ واخله ډك شه. لا تپوسونه هم کوې.

شپونکے: ډېره ترخه ئې هسې د مرچکو په څېر ناسته ئې. ګورے چې څو مړونه به دې پرېښودلی وی.

مصری جان: مړونه خو به ستا مور پرېښودلی وی دا خو زما د پلار کور دے.

شپونکے: او نو چې پلار او ورور چاته اونۀ وے نو وخت به څنګه تېر کړې.

مصری جان: بې ځایه خبرې پرېږده خو ځه ورکېږه هسې نۀ چې څۀ نور څۀ درته پېښ شی. دا د خانانو دروازه ده تۀ نۀ ئې خبر.

دومره درکښې حیا نشته شرمېدلیه.

شپونکے: شرم څۀ ته وائی او خان لا څۀ ته وائی. زما خو په تا داسې مینه راغله لکه د اوږی یا تږی چې اوبو ته یا

ډوډۍ ته ئې زړۀ اوشي.

ما زر څپلۍ ته لاس کړو او دے مې په مخ اووهلو.
دۀ زر ما ته لاس راواچول. دا ئې خیال وۀ چې خالی کوټه ده
ځوک نشته نو زما د بې عزتۍ نیت ئې اوکړو چې دۀ زما
لاس راټینګ کړو نو زما د خلې نه یوه لویه چغه اوخته او د
خلې نه مې د دلدار پلار ته اواز اوختو. چې یا وروره یا
وروره راشه سړے دے. خو خبر د دې سره دې شپونکی زما
په مرۍ ګوتې سختې کړې وې. او زۀ د غرِ نه وتلې ووم. او
خیال مې راغے چې څه هر څۀ چې اوشو. خو بې عزتی مې
اوشوه. په دې کښې مې د چا په منډې منډې د راتلو اواز
واوربدۀ چې ما سترګې پورته کړې نو د دلدار پلار راروان
وو چغې ئې کړې.

**واکدار:** ځوک دے مصری جان تا ته ئې څۀ اووې کۀ.

خو زما د خلې نه غرِ اونۀ ختلو او شپونکی زۀ زر
ارتاؤه کړم. را واپس شو او د دلدار پلار ته ئې په قهر
اوکتل. دا ځوک ده او ستا څۀ دۀ؟

**واکدار:** دا تۀ نۀ پېژنې د خانانو د کور ښځه ده د
هغوئ مزدوری کوی. مصری جان ده مصری جان د خانانو د
کور یوه حیا داره نوکره ده.

**شپونکے:** (پۀ یره غوندې)

وئ دا د خانانو د کور ښځه ده ما خو هډو د سره اونۀ

پېړنده.

پهٔ دې وخت کښې زما هم حوصله په ځائے شوې وه.
او ما رامنډه کړه. شپونکے مې په دې بل مخ په سپېړه
اووهلو او د دلدار پلار ته مې اووې. وروره! دې سړی زما د
بې عزتی اراده کړې وه اوګوره تهٔ لاس ئې راواچولو او
قمیص ئې راته خیرې ویرې کړو. کهٔ تهٔ نهٔ وے راغلے نو زما
به ډېره بې عزتی شوې وه.

ما چې د دلدار پلار ته اوکتل نو په سترګو کښې ئې
د غصې نخښې راښکاره شوې او شپونکے هم پوهه شو چې
اوس څهٔ نهٔ کېږی. زر یې تبرګے د اوږې نه راښکته کړو او په
زوره شو.

شپونکے: کهٔ غږ دې اوکړو نو وژنم دې ګورے. ښه به
دا وی چې خپله لار اونیسې او روان شې.

واکدار: تهٔ نهٔ پوهېږې شپونکیه! چې مونږ پښتانهٔ
خلق د غرونو د لېوګانو په شان نهٔ یو مونږ خور مور او ښهٔ
بد ډېر ښهٔ پېژنو. مصری جان زما خور ده او تا زما خور ته
لاس اچولے دے. روغ به نهٔ ځې شپونکیه رزیله.

زهٔ ورته زر تر مینځ شوم چې پرېږده وروره مسافر
دے خبر دے ځی دې ما بخښلے دے هسې نهٔ چې درته څهٔ
نقصان در اورسوی. خلق به څهٔ وائی. خو شپونکی زهٔ په
مینځ کښې پرې نهٔ ښودم او دیکه یې راکړه اووې وئیل.

شپونکے: اودربړه تهٔ چې زهٔ درتـه پښتونوالے اوښـايم دے لا په ځان پوهه نهٔ دے. او واکدار تـه ګوانښـړی پـه دې مينځ کښې د دلدار مور په منډه منډه د کوره سره د ټوپکـه را اووته وارخطائې اووې. اے سړيه څهٔ چل دے. خبر دے؟

وئ خدايه دا خو مصری جان ځيرې ګرېوان ولاړه ده.

دا زر ماتـه راترغاړه وتـه. او پـه ټوپك واکدار حملـه اووهله. نور څهٔ نهٔ وو. خو ډز شو چې ما اوکتل نو شپونکے زما په پښو کښې لکه د حلال کړی چرګ په ټوپونو شـو. يو څو لحظې وهٔ او بيا ئې لکه د حلال کړی پيسهٔ بتهې سترګې را اووتلې. خلق راغونډ شول. د دلدار پلار ورته ټوله قيصه بيان کړه.

هر چا پهٔ شپونکی بد اووې چې دا خو ډېر ناکاره او بې شرمه سړے وهٔ. په داسې لويـه کوځه کښې څوك داسې غلط کار کوی. خو وړو وړو به وې چې څهٔ کرې هغه به رېبې چې څهٔ کرې هغه به رېبې. بيا چا لمبو لو هم نهٔ او د کلی وړو به پهٔ غرګو ويشتو. چا به ورله په غوږونو کښې ډکی وهل. چا به ورله سترګې پټولې او غړولې. خو مشرخان خلقو تـه اووې. چې اوس دا واړهٔ د سړی نه قلار کړئ چې څهٔ اوشو ښهٔ اوشو او د ګورکفن تيارے ئې ورلـه اوکړو او د کلی نـه شاته پهٔ دې بڼ کښې ئې ښخ کړو.

د دې خبرې ختمولو سره مصرۍ جان يو سوړ اسوېلے

او کړو

اجړې لورې! دا زما قسمت او تقدير دے. دا يو څو غرمې زما په ژوند کښې لکه د اسمان تندر راپرېوتلې.

وے خدائے دې خبر کړی هغه بله شپه مې په خوب کښې يو بله ناکاره غرمه اوليده چې څۀ به کېږی.

پۀ دې کښې چرګانو بانګونه اووې. او چار بانګ شو.

وئ خدايه دا خو چرګانو بانګونه اووې څه اجړې سمله ناوخته دے. بيا به سحر هم راپاسېدل غواړی. وئ اجړې تۀ خو هډو غږ نۀ کوې.

اجړه د ژور سوچ نه لکه د خوب رابيداره شوه.

اوهو! واقعی دا خو چرګانو بانګونه اووې ترور! تا خو ډېر تريخ ژوند تېر کړے دے. خو دا څنې قسمت دې ورك شی د سړی هډو نوکه نۀ لګی. په دې کښې به دې خبر وی. دا د خدائے وېش دے. په تا به ازمائش کوی. ښه ده څه ته سمله. ناوخته دے سحر به بيا راپاسېدل غواړی. زما کټ به هم تيار وی کۀ څۀ.

مصری جان د اجړې د کټ تماشه اوکړه او اواز ئې او کړو. راځه بی بی کټ دې تيار دے.

اجړه راغله پۀ کټ څملاسته خو خوب ورله کله ورتلو او په زړۀ کښې ئې دا ګرځېده چې د غرونو خلق ښۀ

خلق نهٔ دی او د کلو خلق ډېر ښهٔ خلق دی. زما دې ترهٔ څومره بد کړی دی. په دومره لویه کوڅه کښې پردی، پېغلې ته لاس اچول. دا خو ډېر ناروا شوی دی. کهٔ چرې شوکت زهٔ خوښه کړې وے او په زور یې زهٔ د خپل پلار نه راوستے. نو زما د پلار څهٔ مجال وهٔ خو شوکت د کلی سړے دے د سړېتوب نه ئې کار اخستے دے زما پلار ته ئې د منت په شکل اووې او زهٔ یې وادهٔ کړم. او زما ترهٔ لېونے سپے وهٔ او د لېونی سپی دغه انجام وی. دوئ د بدل اخستو قابل نهٔ دی زما پلار نهٔ دے خبر چې د هغهٔ ورور څهٔ څهٔ کړی دی. کهٔ چرې هغه خبر وے نو زهٔ به ئې هډو په دې نیت رالېږلې نهٔ ووم. او د خپل ورور د بدل نوم به ئې هم نهٔ وهٔ اخستے. ښه ده چې مصری جان ته دا پته نشته چې هغه مړ شپونکے زما ترهٔ وهٔ. او نهٔ د دې نه خبر ده چې زهٔ د هغهٔ بدل اخستو له راغلې یم. مصری جان ترور ډېره نیکه ښځه ده. اوګوره تهٔ کهٔ د دې په ځائے بله ښځه وے نو هډو غږ به ئې نهٔ وهٔ کړے. او د دلدار پلار څومره نمك حلاله سړے دے چې د خپل نیك د عزت د پاره یې ځان مجرم کړو. او مرګ یې اوکړو. زهٔ د شوکت او یا د هغوئ د کورنۍ نه څنګه بدل واخلم ځکه چې مجرمان خو هډو دی نهٔ. اول جرم زما ترهٔ کړے دے او مرګ د دلدار پلار کړے دے نو د خانانو په دې کښې څهٔ قصور دے. دا نهٔ شی کېدے، دا نهٔ شی کېدے زهٔ به هیڅکله داسې اونهٔ کړم او د

دي سره سره ئي بيا د خلې نه چغه اووختـه چې دا نۀ شی کېدے دا نۀ شی کېدے. زۀ به دا بالکل اونۀ کړم.

مـصري جـان، شـوکت او پـشمينه پـه يـو ځـائے راپاسـېدل او پـه منـډه راغلـل. ټولـو تـرې تپوسـونه اوکـړل. اجړې اجړې څۀ چل دے خبر دے.

اجړه د سوچ نه رابېداره او ګېر چاپېره ئې اوکتل څۀ چل دے هن تاسو ولې راغلئ خبر خو دے کنۀ.

پشمينه: وئ نامړدې داسې ناکاره اواز دې اوکړو ما خو وې کۀ څۀ اويرېده.

شوکت: ما خو وې کۀ څۀ مار اوچيچلې يا څۀ بـل څۀ بلا راپرېوته.

مصري جان: داسې ناکـاره چغـه دې اويـسته چې زړۀ مې هغه شان درزېږی.

اجړې په خپلو حالاتو قابو بياموندو او زر ئې اووې. واقعی داسې ناکـاره خـوب مـې اوليـدو. تـرور راتـه د شـپې قيصه کړې وه چې وودہ شوم. هغـه هر څۀ زمـا پـه مخکـښې کېدل او چې دا هر څۀ کېدل نو زمـا د خلـې نـه د وارخطايۍ چغه اوختله. تاسو وارخطا کېږئ مۀ خېر دے خېر دے.

پشمينه: ګورے ترور د شپونکی هغه قيـصه دې ورتـه کړې وه کۀ.

مصري جان: او او بچئ دې پرېښودم نۀ بس ټولـه شـپه ئـې

راباندې روڼ کړې ده هغه ټوله قیصه مې ورته کړې ده.

د دې سره دوئ ټول په خندا شول.

پشمینه: او او زۀ هم یو څو ورځې بیا داسې یرېدم. دا به هم زما په شان دوه درې ورځې ویرېږی. څه اجړې اوس ووده شه ارام اوکړه کۀ کولے شې.

دوئ بیا خپلو خپلو ځایونو ته لاړل او اجړه بیا د سوچ ډکه کټ ته ارتاوه شوه. او دا ئې اخره فېصله اوکړه چې زما ترۀ په ظلم نۀ دے مړ. هغه چا ظالم نۀ دے وژلے. خو یو انصافدار او عادل سړی وژلے دے. زما ترۀ ګنهګار وۀ. کۀ چرې هغه نۀ وے مړ نو داسې به یې غلط غلط کارونه کول. دا خو د الله شکر دے چې د هغۀ سره د هغۀ په ګناه مونږ ته څۀ عذاب نۀ دے رارسېدلے. د هغۀ مرګ کول عدل وو او د هغه انتقام اخستل ظلم دے. دا هیڅ کله نۀ شی کېدے.

بیا ئې په خپل کور او د کوروالو په مینه نظر واچولو. او ځان ته ئې په زړۀ کښې اووې.

اوګوره تۀ اجړې! چې هیله چغه دې د خلې نه اوختله نو ټول کور والا درته لکه د خپلې مور خور او یو ښۀ مخلصانو راغونډ شول. دا انسانان نۀ دی فرشتې دی فرشتې.

کۀ خشاکے هر څۀ وائی زۀ به د هغۀ لکه د مصری جان

ترور مقابله اوکړم. خو د دې کور عزت به خرابېدو له ورنهٔ کړم. دا زما فرض دی او دا زما فرض دی. دا زما اخره فېصله ده. په بله ډډه شوه د وودهٔ کېدو نیت یې اوکړو او سترګې ئې پټې کړې.

## سپین سر

د سوات دیوښکلي او حسین رنګین ملک یو ښائسته ټکړه چې بلندي ئې په معراج ده.

هر وخت د ژمي په موسم ښکلې او سپنیې سپینې واورې او د اوړي په موسم تازه او یخې یخې هواګانې، معطرګلونه، سپین سر د شپونکو او نورو اوسېدونکو او سېل کوونکو د پاره یو زړۀ راښکونکے ځائے دے.

شپونکیان عام طور په ژمي د سمې علاقې ته او په اوړي سپین سر ته ځي.

خشاکے خړه او لاجبر هم خپل مقصد ته رسېدلي وو.

د خشاکي هغه مزه نشته لکه چې نور کله به وۀ. ځکه چې خشاکے د شپونکیانو یو ښۀ بهادر او زړۀ ور غټ کټ زلمے وۀ. د شپونکیانو اکثرو جینکو به د هغۀ تعریف کولو او وئیل به یې چې.

اجړه ډېره خوش نصیبه او بختوره ده چې ورته داسې ښۀ کاردارے خاوند په لاس ورغلے دے.

مازيګر وخت دے. ګډې بيزې او اسونه څر کوی
خشاکے د ګټ په سر ناست دے او شپېلۍ وهی او پکښې
يوه مغمومه سندره وائی چې کله پکښې د بې وفا ارکان
وفادار ګڼی کله اجړې ته دوکه بازه او سرمسته اووائی. خو
کله خپله مينه صادقه او پاکه ګڼی. خو وائی چې اجړه به
ضرور سپين سر ته راځی.

د دۀ غونډې نور شپونکيان هلکان او
جينکۍ هم ګډې بيزې څروی. څوك شپېلۍ غږوی او څوك
هسې کيخ کيخ، پوش پوش، پخ پخ هائې وئ او داسې نور
اوازونه کوی چې ګډې بيزې مشغولې کړی. يوه پېغله
ښائسته جينۍ چې نوم يې ګوجره وۀ. د خشاکی سره ئې ډېره
مينه وه. دې هم خپلې ګډې څرولې. چې د خشاکی د شپېلۍ
اواز ئې تر غوږ شو. نو د ګټ خواله راغله. روغوندې يې د
خشاکی په اوږه لاس کېښودلو. خشاکی سر اوچت کړو.
ګوجره ئې اوليده زر ئې ځان سنبال کړو او په خپلو حالاتو
ئې قابو راوستلو. وارخطا غوندې ئې اووې.

خشاکے: ګو ګوجرې تۀ دلته... دا دا څنګه.

ګوجره: ولې تۀ خو وارخطا شوې.
اويريدې څۀ؟

خشاکے: زۀ اويره دا ډېره لرې خبره ده خو تاته حېران
يم چې زۀ دې څنګه ياد شوم.

ګوجره: تهٔ هم د چا هېرېدے شي خشاکیه.
ستا رنګ زور او ضد خو د هلکوالی لوړې لوړې نخښې دی
چې ما غوندې پېغلې په دې فخر کوی.

خشاکے: دا فخر یوائې ستا غوندې پېغلې کهٔ هر یوه
کولے شی.

ګوجره: هر هغه پېغله چې په سینه کښې یې زړهٔ وی
صرف زړهٔ.

خشاکے: نو ولې دا زړهٔ د هر چا په سینه کښې نهٔ وی
څهٔ؟

ګوجره: دا څهٔ اوتې بوتې وائې زهٔ څهٔ وایم او تهٔ څهٔ
وائې؟.

خشاکے: هم هغه څهٔ زهٔ وایم کوم چې تهٔ وائې مطلب دا
دے چې په مینه کښې خو زړهٔ د هر چا وی خو په زړهٔ کښې
هم څهٔ پکار دی کنهٔ.

ګوجره: هډو د خبرې په مطلب دې نهٔ پوهېږم چې تهٔ
څهٔ وائې ـ څه پرېږده نورې خبرې خو یو دوه ټپې په شپېلۍ
کښې اوکړه.

خشاکی په شپېلۍ ګوتې کېښودې. د شپېلۍ ژبه
یې په شونډو برابر کړه. خو یو اسوېلے ئې اوکړو او شپېلۍ
ئې بیا د شونډو بیرته کړه. نهٔ شم وهلے دا ساعت. اوس مې
زړهٔ بالکل نهٔ غواړی ګوجرې.

وئ دومره معمولي فرمائش نهٔ شي پوره کولے نو دا تهٔ څنګه هلك ئې. ته نهٔ اورې دا ريډيوګان چې خلق ورته بلها بلها خطونه ليږي. هر سړے د هغوئ نومونه اخلي او د هغوئ په وينا د هغوئ د خوښې سندره غږوي نور څهٔ دي په دې دنيا کښې خو يا نشې دي او يا تماشې دي. نشې خو خېر بد شے دے نو دا تماشې خو کولے شو کنهٔ.

خشاکے: زهٔ په خپله يوه تماشه يم ګوجرې نو د بل به څهٔ تماشه اوکړم.

ګوجره: تهٔ خو ډېر تکړه ځوان ئې دا په تا څهٔ اوشو. او هن خبره مې ياده شوه رشتيا. ما وې د دهٔ نه به ځان له تپوس کوم.

خشاکے: وايه وايه مازغهٔ خو دې راله شنهٔ کړل. څهٔ چې وے زر ئې اووايه چې بيا خپل غم ژاړم.

ګوجره: اجړه څهٔ شوه.

د خشاکي د خلې نه يو سوړ اسويلے لاړو او د سترګو نه ئې اوښکې رواني شوې. مرۍ ئې اوچه شوه او هډو غږ ئې اونهٔ کړے شو صرف سر ئې اوخوځولو چې لاړه پاتې شوه.

ګوجره: چرته پاتې شوه چا پاتې کړه.

خشاکے: زما بې غېرتۍ پاتې کړه او د خپل پلار دوسئې نور چا.

ګوجره: دا څنګه.

په اجړې خو ټول سپین سر خوشے دے. د هغې د ناز و ادا ګرځېدل خوږې خوږې خبرې د ګډو سره وئيلې سندرې د تمبلونو مجلس دا غوړې څمې. وړوکې شونډې. تورې سترګې او سرې شونډې. بس خو د سپين سر یو ښکلې سندربولې جینۍ وه. لکه چې د باغ نه بلبل مړ شی. بيا به نۀ راځی خشاکیه.

خشاکے: هيڅ يقين مې نشته چې را به شی.

ګوجره: تۀ د څۀ نه معلوموې چې را به نۀ شی.

خشاکے: تۀ خبر ئې هغه څنګه پاتې شوه.

ګوجره: څۀ لږه غوندې خبر خو ووم خو ما وې چې د دۀ نه ځان ښه پوهه کړم.

خشاکے: ښه ده نو بیا واوره چې څۀ وو او څۀ اوشو.

خشاکی ورته د سر نه تر وبښه قصه خلاصه کړه کله ژړلی. کله اخوا دېخوا کتلی. راکتلی. خو په جټکو جټکو ئې قیصه ختمه کړه.

ګوجرې پکښې کله ناکله اوښکې هم توئې کړې.

ګوجره: خشاکیه خدائے دې اوکړی چې اجړه په خپل مقصد کښې کامیابه راشی.

خشاکے: دا مې هډو یقین نۀ اخلی.

ګوجره: څۀ د خپل ځان د پاره نۀ ده تلې خو ستا د

پلار د بدلې اخستلو کوشش کوی.

خشاکې: زما پلار هسې هم مړ وۀ. د هغۀ د بدلې اخستلو د اجړې نۀ زما حق وۀ صرف زما.

ګوجره: بله چاره ئې نۀ وه نو. خانان زورور خلق دی. د هغوئ سره څۀ کېدے شی.

خشاکې: ښځه بې وقوف څیز وی ګوجرې. خلق متل کوی. د هوا مرغۍ خو د هغه چا ده چې چا اونیوله. او دا رشتیا دی چې ټوپك، اس او ښځه د چا په لاس کښې وو نو د هغه دی. زړۀ مې نړېدلے دے. ډېر وخت اوشو او تر اوسه د هغې سوال جواب هم رانۀ غلل.

ګوجره: خبر دا به د کاکاجی عقل وۀ ګنې خپله لور څوك د خپله لاسه تنور ته اچوی. یوه ازاده پرنده جینۍ د سپین سر سپل کونکې مرغۍ به ځان څنګه په پنجره کښې اوساتی. هغه به ضرور تر خپله مقصده ایساره وی.

خشاکې: مقصد، مقصد هیڅ نشته. دلته خو ئې د سپینو زرو پېکړه نۀ وه او هلته ئې د سروزرو هارونه، تیکې. بنګړی او ښې د ریښمو او پلشو جامې موندلې وی. موټرې لاری. نوکرانې، ښۀ خوراکونه، کټونه، بستونه، بنګلې ښکلې ښائسته خان ګپ شپ هغې ته به د څۀ کمے وی چې ما یاد کړی یا خپل مور او پلار زۀ خو خبر لیکن مور پلار ئې هم هېر کړل. زۀ خو به چرته بل خوا لاړ شم.

او لا اولته لحاظ په ما چې زما د پلار بدل اخستو له تلې ده.

ګوجره: نو دا خو رشتيا دي. کاکاجي خپله لور ولې په داسې ډنډه ورګډوله خو د خپل ورور د بدلې اخستو کوشش ئې کړے دے. او هغه ستا پلار وۀ.

خشاکے: مازغۀ مې مۀ خوږوه ګوجرې تۀ هم راپسې داسې لګيا شوې چې زړۀ دې راله ستړے کۀ.

ګوجره: غصه کېږه مۀ. هغه اجړه نۀ زۀ ستا د پاره بله اجړه شوم. ستا څۀ خيال دے چې تۀ د اجړې سره محبت کوې. او هغه ستا نه نفرت کوي. ځکه چې تۀ وائې زۀ هغې هېر کړم. او زۀ به تا په ژوند هم هېر نۀ کړم وادۀ به اوکړو او ما خو په زړۀ کنبې دا وعده وه چې د سپين سر په ټولو زلمو به خشاکے بدل نۀ کړم. خپل مشر ورور ته مې دا خبره اوکړه. هغه اووې چې کچرې خشاکے زما اوښے شو نو دا به زما خوش قسمتي وي. زۀ به شکر اوباسم.

خشاکے: دا نۀ شي کېدے ګوجرې زما ژوند اوس د وادۀ نۀ دے.

ګوجره: ولې تاله څۀ چل دے.

خشاکے: زما په سر يو بدل وۀ اوس دوه شو. اول خو د پلار بدل اخستل وو. لا هم خيال مې نۀ وۀ ځکه چې ځنې خلق وائي چې ستا پلار قصور کړے وۀ. د دې وجې نه

خانانو وژلے دے. کېدے شي چې هغۀ چرته څۀ بد کړي وي خو دا راباندې دويم بدل په سر راغلو.

ګوجره: دا خو هډو د بدل خبره نۀ ده. زۀ د پوره قيصې نه خبر يم.

خشاکے: د څۀ قيصې نه ځنګه خبر يې.

ګوجره: ماته پته ده چې د خان زوے سره د يو ملګري مازيګر راروان وۀ. او تاسو کندړك هلته د شپې د پاره اوګرځولو. اجړه مخکښې د مور سره روانه وه. د خان ځوی اوليده او مئين شو. پرې پوهې د خان زوے نۀ بلکې اجړه هم مئينه شوه. دا خو د هغې رنګينه دوکه وه. چې اجړې اووې چې زۀ به د خپل ترۀ بدله واخلم هغې ته محبت او مينه تر لاسه شول په تا څۀ کوی.

خشاکے: نو بيا زما سر څۀ له خوړوې. دا هر څۀ خو درته ما اول اووئيل. خو تا نۀ منل اوس په خپله د دې هر څۀ اقرار کوې دا څۀ رنګه عقل دے.

ګوجره. زما ډېر بنۀ عقل دے ما وې چې کۀ چرې د دۀ د خيال نه اجړه هېره شوې وی نو دا به زما خوش قسمتی وی خوحېرانه يم چې د داسې بدو باوجود تۀ بيا هم اجړه ياده ساتې. دا ځنګه کېدے شی. انتظار خو د څۀ وخته پورې کېدے شی. تۀ اووايه څومره وخت اوشو.

خشاکے: په پروسږني اوړي اجړه تلې ده. په ژمی مونږ

بیا هشتنغر ته لاړو چې واپس راغلو نو په کلی کښې ما غلے تپوس اوکړو. خو خلقو اووې چې اجړه هغه د خان ګوجره ښځه هغه خو د هغۀ سره د کالج دے کۀ د سکول په بنګله کښې ده ماته دغه بنګله څۀ معلومه وه. واپس په مات زړۀ راغلے یم. دا ئې دویم اوړے دلته شروع شو. زما یقین دے چې یو کال او نهۀ میاشتې ئې تېرې شوې. خو د اجړې هډو درك اونۀ لګېدۀ.

ګوجره: بس بس چې دومره اورېده ښځه پاتې شی بیا کله د چا په لاس راځی هغه به اوس ضرور د هغۀ وی او د هغۀ شوه. ښه به دا وی چې زما سره وادۀ اوکړې.

خشاکے: زۀ به سوچ اوکړم ګوجرې. زما اوس هم یقین دے چې اجړې به وخت نۀ وی موندلے ګنې هغه به ضرور خپله بدله اخلی.

ګوجره: اجړه اجړه. بدل بدل دا هر څۀ هسې خیال دے خشاکیه. بیا به په ما پسې ارمان اوکړې ګورے. تۀ کښېنه خپله شپېلۍ غږوه. اوس زۀ ځم سبا به راشم کۀ دې خوښه وه نو وادۀ به اوکړو.

او دې سره ګوجره لاړه.

ګوجره کورته راغله وروز ئې راغلے وۀ. ستړے ستومانه پروت وۀ. د ګوجرې نه یې تپوس اوکړو.

ګوجرې یا ګوجرې.

ګوجره: هاؤ لالاجی څۀ وے پئ مې راوړل.

جلندر: په دې وخت چرته تلې وې. خوشې مۀ ګرځه دا خو سپین سر دے. دلته د شپونکو څۀ کمے دے هسې نۀ چې زمونږ په عزت څۀ بدنامی راشی. پلار او مور مې مړۀ دی. یک یواځې خور مې ئې تاته مې سترګې غړېږی.

ګوجره: ولې لالاجی هغه خبره دې هېره شوه ابله ورځ چې دې راته کړې وه.

جلندر: د څۀ خبره ماتاته څۀ وئیلی وو هډو یاد مې نۀ دی.

ګوجره: تا نۀ وې چې د خشاکی پلار زمونږ پلار وژلے وۀ. ځکه چې دے زما په مور مئین شوے وۀ. خو هغې ورسره د وادۀ کولو نه انکار اوکړو. او زما د پلار سره ئې وادۀ اوکړو. د خشاکی پلار اولګېدۀ او زمونږ پلار ئې مړ کړو نو ښځه به یې ما واخلی. خو زمونږ مور انکار اوکړو. او هغې اووې چې د یو ځوی او یوې لور سره به کونتون اوکړم. خو تا به وانخلم نو د هغې بدلې اخستلو په تکل تا وئیلی وو چې خشاکی نه دا بدله اخستل غواړی. د هغې د بنا تړلو دپاره وتلې ووم.

جلندر: اوهو زما خو هېروو. دا خو ډېره ضروری خبره ده. تا ورته څۀ اووې.

ګوجره: ما اسان کړے دے. دې ته مې دلاسه کړے

دے چې زما سره وادهٔ اوکړی نو دلته به ئې کار خلاص کړم او کهٔ په دې دلاسه نهٔ شو. نو اجره ترې د خان زړې پانې کړې ده دا پېغور به ورله ورکړم او کلی نه د ننو سره سه هغوئ يې لکه د قصاب د قيمې وړوکې وړوکې کړی خوښه دې نهٔ ده څهٔ

جلندر: گوجرې افرين شاباش زما خو به تا هډو دا يقين نهٔ راتلو واقعي د خشاکی نه دا بدله اخستل ضروری دی ځکه چې مونږ ئې يتيمان پرېښودلی يو او پلار ئې راله مړ کړو اولا دا مې هم اوربدلی دی چې کله زمونږ مور د دهٔ سره د وادهٔ کولو نه انکار اوکړو. نو د شپې ئې ورته تېزندی واچوله او هغه ئې هم مړه کړه. زما ترهٔ وې چې مونږ ښحوله نو مرئ يې تکه شنه وه او په دغه شپه د خشاکی پلار زمونږ کره راغلے ليدلے شوے وهٔ. خو وخت ډېر تېر شو. اوس دا خبرې د خلقو هېرې شوې دی. د خشاکی خو بالکل په خيال کښې نهٔ راځی چې د هغهٔ پلار لا داسې غلط کار کړے وهٔ. خو دا ورته نهٔ ده معلومه چې د هغهٔ پلار يو ډېر بې باکه او سپک سړے وهٔ. د دې نه خبر ئې چې په کلی کښې مې د خان نوکر وژلے وهٔ.

گوجره: نانا لالاجی ماته څهٔ پته ده.

جلندر: دے ډوډۍ غوښتلو له تلے وهٔ نو د خان دروازې له وراغے د دروازې څوکيدار ورته اووئيل. چې

حجرې ته لاړ شه هلته به دروړی خو دۀ اووې چې زۀ دلته خورم هغه ورته اووې چې ښه خوره ځوکیدار راپاسېد نو دۀ ناڅاپی حمله کړه او په مزدوره یې بد نیت اوکړو هغې شور جوړ کړو او دۀ د زور نه کار واخستو په دې کښې د خان ځوکیدار رااورسېدۀ او بیا یې ناراستی نۀ ده کړې خو دوه ټوپکه ئې اوویشتو او سوړ یې کړو. د کلی خلقو پرې د پاسه اوربل کړو او بیا چا ښخولو هم نۀ چې داسې ناکاره کار ئې کړے وۀ نو مړ کېدۀ به نۀ او دا خشاکے هم د ټوقو نۀ دے. داسې بدې او کوچرې سترګې یې دی چې حد یې نشته. زما خو هډو په سترګو کښې نۀ غړېږی خدائے دې خبر کړی نو.

ګوجره: وئ توپه مې دې وی ما وې چې دا د کلو خلق ناکاره وی دا ناکاروالے خو تول په مونږ دې خلقو کښې دے. خپل خپلوان نر ښځه او خور مور هډو نۀ پېژنو. دے ډوډۍ له تلے وۀ او بیا داسې پردۍ ښځې ته ئې لاس واچولو. دا کۀ زۀ وے ما به په تبرونو وهلے وۀ لالاجی او لا دا هم چې زما مور ئې تېزندی کړې ده او پلار یې راله په زهرو وژلے دے. دا انتقام به ضرور اخلم.

جلندر: ګوجرې ستا لاسو ته به ګورم افسوس چې زما ورور وے یا زۀ جوړ وے په لاس پښو کښې مې دم نشته ګنې خشاکے او لاجبر به ما دواړه په تورو خاورو کښې

ورمنډلی وو خو څۀ اوکړم.

ګوجره: غم مۀ کوه لالاجی سبا کۀ خبر وی نو رخصت به ئې کړم درله.

دوی شپه تېره کړه جلندر نن بیا ټیک غوندې نۀ وۀ نو کور پاتې شو او ګوجره د بیزو سره لاړه. خشاکې بیا په خپل مخصوص انداز د ګټې په سر ناست دے شپېلۍ غږوی. ګوجره راغله.

ګوجره: خبر شه زلمیه بس نور څۀ دې نۀ دی ایزده خو دغه شپېلۍ غږوه. ماتاته پرون هغه خبره کړې وه ستا ځنګه خوښه ده د خپل ورور نه مې تپوس اوکړو هغۀ خو دلاسه دے.

خشاکې: د څۀ خبره

ګوجره: د وادۀ خبره کنۀ نور د څۀ.

خشاکې: پربږده مړې تاته اوګوره او وادۀ ته اوګوره زۀ ستاسره وادۀ کوم تۀ د وادۀ شے ئې. زما ښځه شته هغه به ضرور راشی.

ګوجره: او رابه شی هغه به څۀ ښځه وی چې یو نیم دوه کاله د بل په کور اوباسی. زما یقین دے چې تۀ ځې نو بچی به ئې ضرور شوی وی. نو څۀ رنګه به ئې راولې. او لا تۀ به ئې راولې تۀ په ګټ کښېنه شپېلۍ غږوه او اجره به د هغې خوشحالو نه په تاپسې راشی. هغه کم عقله نۀ ده چې د

خپلې خلې نه نمړې او شوکوي او ځان او ړے تر ے پر بر دي
او تاسره به ټوکرې په سر ګرځوي.

د قیامت انتظار کوه په طمعه اوسه. اجړه اجړه کوه
او ژوند تېروه. ګوره ګوره کوه خلقهٔ به دې خوړېږي ستا
غوندې زلمی لا هم شپېلۍ غږوي. کهٔ ستا په ځائے زهٔ وے
نو ما به اوس ځان دې کافرې ډنډې ته اچولے وهٔ او مړه به
ووم.

د خشاکې دلاسه شپېلۍ اوغورځېده او قهر شو.

**خشاکے:** ګوجرې تهٔ ماته پېغور راکوې زهٔ درته بې
غېرته ښکارم غلې شه ګنې نو
(او روغوندې ئې په برېتو لاس راښکو)

**ګوجره:** (په خندا شوه)

تهٔ ډېر غېرتي ئې. برېت دې لړ نور هم لوئے کړه. د
پلار د مرګ بدله اخلې او هغه هم په ښځې. د ښځې د لاس
به څهٔ بدله وي. بدله ستا غوندې د ځوانانو کار دے د ښځو
نهٔ دے.

**خشاکے:** غلې شه ګوجرې تهٔ په دې قهر شوې چې ما
ستا سره د وادهٔ کولو نه انکار اوکړو.

**ګوجره:** دا خو ما هسې ټوقه اوکړه. زهٔ او ستا سره
وادهٔ کول ډېره مشکله خبره ده. په دې خو ماله شرم راځي
خلق به وائي چې ګوجره د هغهٔ خشاکې ښځه ده چې يوه

ښځه ئې د خان په زوی واده ده. اول لاړ شه اجړه راوله پلار
دې اوګټه بیا هلۀ زما سره واده کوه ګنې په سوك پسې مې
ګرځه. ستا خلۀ د حلوا د خوراك نۀ ده خشاکیه. لکه دا چې
ئې داسې به ګرځې. زۀ درنه لاړم او خپل سوچ پرې اوکړه.
چې څۀ رنګ دې خوښه ده.

خشاکے په ژور سوچ کښې ډوب شو د ګټې د سر نه
په خوئیدو راکوز شو واقعی دا خو ډېره د شرم خبره ده. د
اجړې په سر بدله اخستل هم زما د پاره د شرم کار دے. پلار
زما مړ دے او بدله دې اجړه اخلی. هم مې پلار بائیلو او هم
مې ښځه.

خدائے دې خبر کړی چې اجړه به اوس زما ملګرتیا
کوی او کنۀ. نا هغه به بالکل زما ملګرتیا اونۀ کړی. ځکه
چې دا دوه کاله ئې قابو شو او تر اوسه ئې خبر رانغے. کۀ د
هغې انتقام په زړۀ کښې وے نو تر اوسه به ئې ضرور خبر
رالیږلے وۀ. اوس خو د ګوجرې دې پېغور د سترګو د غړولو
نه اوویستم. هر څۀ چې کېږی سحر به وختی اوځم او تر
هغې به کور ته نۀ راځم چې تر څو پورې مې اجړه نۀ وی
راویستلې او یا مې خان نۀ وی وژلے. او یا زۀ مړ نۀ یم. ګڼې
دې پاتې.وی کاکاجی دې ورسره خپل جوړ کوی. زۀ نور دا د
بې غېرتۍ ژوند نۀ شم تېرولے.

او هم داسې په سوچ کښې کور ته راغے. په

خپل لمسی پرېوتلو او اسوېلے یې اوکړو چې هائې هائې.

لاجبر: ولې بچیه نن خو وختی راغلې خېر خو دے کنهٔ طبیعت دې ښهٔ دے کهٔ.

خړه: خدائے دې خېر کړی. دا رنګ دې داسې بدل ښکاری چائے درله پوخ کړم. هن اودرېږه چې د ویلنی تلے درله راوړم او دا ګوړه ورسره اوخوره.

خشاکے: ویلنے هم مهٔ راوړه او ګوړه مې هم نهٔ ده پکار خو دې نه به دا ښه وی چې نور څهٔ مهٔ وایه تندار.

خړه: وئ په پوزه مچ هم نهٔ پرېږدې مونږ درته څهٔ وئیلی دی.

خشاکے: نور به دې څهٔ وې زما پېغله ښځه دې د روپو په بدله د خان په زوی خرڅه کړه چې ستا د پلار بدله به واخلی. څهٔ شوه هغه بدله اخستونکې پېغله. د تهول کور عزت مو خرڅ کړو. پیسې روپۍ دې په جېب کښې کېښودلې. پلار خو زما خان وژلے وهٔ. خو اوس دا عزت چا لټ کړو اوس راته خلق پېغورونه راکوی.

خړه: وئ د خلقو ژبې چاړې ګانې شه. تهٔ هسې د چا په سترګو کښې نهٔ غړېږې. ترهٔ دې بوډا دے او تهٔ د کار خاوند یې اوس مو دا خلق په کور هم نهٔ پرېږدی.

لاجبر: بچیه تادی مهٔ کوه اجره به خپل کار تر سره کړی ضرور به راځی.

خشاکې: ځنګه به تر سره کړې یو کال او نهه میاشتې ئې اوشوې او تر اوسه یې خبر هم رانغې. نو زهٔ به لا په طمع یم زهٔ به سحر وختی ځم. یا خو به اجړه راولم یا به خان مړ کړم او یا به ځان مړ کړم.

خړه: وئ خدایه خدایه دا په تا څهٔ اوشو. ساړهٔ اوخوره بدله اختسل داسې په تادئ کېدے شوے نو بیا به څهٔ وو.

لاجبر: بچیه تندار دې ښهٔ وایی په سوچ کار پکار دے.

خشاکې: نور پکښې سوچ سوچ نشته. تندار ډوډئ راله د شپې تیاره کړه او سحر به ضرور ځم. دا ما وعده کړې ده او زما به د واپس راتلو طمعه نهٔ کوئ.

خړه: نو دا به اوس ځنګه چل کېږی تاته خو هلته د ځائے ځائېږی پته هم نشته او تهٔ داسې قهر لاړ شې نو څهٔ به اوکړې. ښه به دا وی چې په سړه سینه لاړ شې.

خشاکې: تندار دا خبره دې ښه اوکړه په مصلحت به لاړ شم نو خونه راته اوکړئ.

خړه: خفه مهٔ شې بچیه. هن دا کونجے او د نمیرو نظر پانه درسره واخله. یو دړه د شونتې دا یو لمسے غوندې ګوګړ هم دی. د وړو د پاره متاکیان غوزان وړې نو هم بده نهٔ ده. ښهٔ په حوصله به لاړ شې. او داسې به هلته اووائې چې زهٔ

د خپل ترۀ د لور سره وينم. خانانو خلقو رواج بدل وی. هغه به سامان يوسی کورته او اجړه به ستا سره يواځې ملاؤ کړی. ځکه چې د هغو نورې ښځې ستروندې وی. تۀ به د اجړې نه ځان ښۀ پوره پوره پوهه کړې چې هغه ولې ايساره ده او څۀ پروګرام ئې دے.

**لاجبر:** او او بچيه تندار دې ښۀ وائی.

**خشاکے:** بس بس تندار دا سامان برابر کړه. زۀ به سحر ځم.

شپه تېره شوه خشاکی جامې بدلې کړې پيتاوے ئې اوتړلې. کونجے ئې په ګوډی کښې واچولو. په اوږه ئې شونتې او په ترخ کښې ئې متاکيان غوزان پراتۀ د کلی طرف ته روان شو.

په سوچ کښې دے چې څۀ به کېږی او اجړه به څنګه اوۏينم. ورته ياد شول چې چاړۀ خو مې هېره کړه واپس شو او چاړۀ ئې په بډه کړه تبرګی ئې په اوږه کړو او ښۀ په سکون ئې د کلی مخه اونيوه.

# انتقام

خشاکے سرې سترګې د کور نه راروان وۀ. تېره تبرګۍ په اوږه چاړۀ په بډه. په بله اوږه د نمبرو د نظر پانې ګېډه ے د شونتهۍ دړه او ترخ ته يې د غوزانو او ګوګړو پنډوکی اچولی ښۀ د کافی پېټۍ سره روان دے او لا پکښې تاؤ کړے لمسے هم په سر دے. ښۀ په تندۍ روان دے. يو شپه پرې په لاره راغله. دۀ شپه جماعت ته وبوړه او لکه د پخوا غوندې د ډوډۍ غوښتوله روان شو. چې د يو ملك حجرې ته وراغے.

خشاکے : السلام عليکم!

ملك کاکا ياره نوکره لږې اوبۀ راکړه تږے یم

نوکر: لا خو ناست نۀ ئې اوِ بيا اوبۀ راکړه.

ملک: قهرېږه مۀ خونه ګله. مېلمه دے اوبۀ ورله ورکړه. سترے غوندې ښکارى. مېلمه ګورے د لرې نه راغلې کۀ.

خشاکے: د هغې سپين سر نه راغلم.

خونه ګل: هن مېلمه دا اوبۀ واخله.

خشاکے: الحمد الله ډېرې خوږې اوبهٔ وې.

ملک: مېلمه تهٔ چرته سمې ته ځې کهٔ.

خشاکے: نه صېب دې لاندې کلی ته ځم خو ناوخته شو ما وې شپه به دلته اوکړم. سحر به لاړ شم.

ملک: دا نمبر او ګوګړ دې چرته خرخ له راوړی دی که؟

خشاکے: نه جی نه. دا خو د خرخ نهٔ دی هسې کهٔ لږ ستاسو پکار وی نو ځان له ترې واخلئ.

ملک: نه مېلمه مونږ څهٔ ډاکوان یو څهٔ چې مېلمه د ډوډۍ او اوبو په ځائے اولوټو.

خشاکے په خندا شو.

خشاکے: ملك بابا د ډاکې خبره نهٔ ده. زهٔ څهٔ ډاکو یم چې ډوډۍ له راغلے یم. خو د ضرورت معامله ده. نور څهٔ نشته.

ملک: په کوز کلی کښې دې د چا سره کار دے مېلمه.

خشاکے: یره ملك صېب ستاسو نه څهٔ پرده. د هیبت خان ځائے ته ځم.

ملک: چرته د هغهٔ د هغې زوی د ښځې څهٔ رشته دار خو نهٔ ئې

خشاکے: ملك صېب هغه زما د ترهٔ لور ده د هغې څنګ

ته ځم.

**ملک:** خلق خو د هغې ډېر صفت کوی چې ډېره قابله ښځه ده. ما خو هډو لیدلې نۀ ده. اګر چې دغه هلك زما خورئے دے. زۀ ئې خپل ماما یم. بیا هم دا خبره راته بده ښکارېده چې یو پښتون هلك ولې شپونکی ښځه اخستله. نو سترګې مې پرې هم نۀ دی لګولې.

**خشاکے:** ولې ملك بابا تاسو ته دا شپونکیان د خدائے بندیان نۀ ښکاری څۀ.

**ملک:** ولې نۀ ښکاری بچیه خو د هر ځائے جدا جدا رواج وی. زمونږ د کورونو ښځې په عزتونو کښېني. او ستاسو دا زنانه په سمونو بدې ښکاری. هغه د خوشحال بابا شعر دے وائی چې.

هر سړے پېدا دے خپل خپل کار لره کنۀ.

خفه نۀ شې مېلمه دا خو مې هسې اووې ستا خو اوس په مونږ ډېر حق دے. هغه کۀ ستا د ترۀ لور ده خو زما انګور ده او د انګور سپکه وئیل خو د سخر د پاره هرګز نۀ ده پکار.

**خشاکے:** زۀ هم په خپله چرته نۀ یم راغلے چې څنګه دلته پاتې شوې ده نو بیا ئې مونږ هډو تپوس نۀ دے کړے. خو اوس راته تندار او ترۀ اووئیل چې دوه کاله اوشو او د جینۍ هډو پته نۀ لګی. خدائے خبر چې څنګه ده. تۀ لاړ شه

پېژندنه اوکړه ما لا په زړه کښې وې ګورے چې هغه به ما پېژني او کنه خو راشه ورشه کۀ سترګې ئې ښې وې نو خا کۀ بدې وې نو بيا مې لار په مخه ده راځم به.

**ملک:** ولې به تاته بد ګوري. هغه هر څۀ چې ده خو ستا د ترۀ لور ده. نۀ خپل نسل خوښوی او بيا د هغې خو خلق داسې تعريف کوی چې په صفتونو ئې خلق مړۀ شول.

**خشاکے:** حېران يم يوه شپونکۍ جينۍ او په کلي داسې د صفت ژوند تېرول دا څنګه کېدے شي.

**ملک:** دا د شپونکۍ والی شے نۀ دے. زلميه خوئ او قابليت جدا څيز دے. زما د خور خوش قسمته ځوے دے لوئے تعليم يافته د کالج پروفېسر چې پنځلس شپاړس سوه روپۍ د يوې مياشتې اخلی او ورته ښه سرکاری بنګله ملاؤ ده. چې دومره ښۀ قسمته دے نو ښځه به ورته ولې ناکاره ملاوېده.

**خشاکے:** او نو د غټانو خدائے ملګرے وی هم ئې مال وی او هم ئې خوشحالی.

**ملک:** خيال خو په مال دے او خوشحالی خيال ته وائی مېلمه او زۀ وايم چې خوشحاليانې دی خو ستاسو دی. ښۀ ازاد خلق يئ چې چرته ښه هلته شپه. پاتې مونږ شو چارو ناچار به په خپلو کورونو کښې بند ناست يو. کۀ د ښځې خاوند خوښ وی او کۀ نۀ خو ګذاره به کوی. او

ستاسو په رواج کښي خو داسي هډو شته نۀ

خشاکے: ملك بابا دا غلطه خبره ده. تاسو زمونږ په سر د پښتني او ازاد ګرځېدل وينئ خو زمونږ نوره ستړی نۀ وينئ. در په در ټکرې وهو. د شپې ځائے مو نۀ وی د باران او سيلۍ سره مو ميشته ده. توده ډوډۍ هډو چرته موند ے نۀ شو. هر وخت د سوال نوړۍ ده. په تاسو د خدائے فضل د ے ښۀ په ارام د خپلو خپلوانو سره ناست يئ. مونږ خو په ټوك پسي ګرځو.

ملك: مېلمه ډېر هوښيار زلمے ئې خو خلق متل کوی چې دا د خدائے وېش د ے ځوك په ډوډۍ پسي ګرځوی او په چا پسي ډوډۍ ګرځوی. نور هيڅ فرق نشته. مونږ له ډوډۍ راکوی او تاسو په ډوډۍ پسي ګرځوی او خپلي د ترۀ لور ته او ګوره چې د هغې په قسمت نور خور اور رزق نۀ وۀ نو مزې نۀ کوی.

خشاکے: ګورے چې مزې کوی او کنۀ تاسو وايئ چې مونږ ترې خبر نۀ يو.

ملك : خبر داسي خو ترې ځان خبروم کنۀ. ښه خوشحاله ده. د کالج د کالونۍ په ښائسته او شيشه داره بنګله کښي اوسېږی. ښۀ ښائسته او مضبوط موټر ورته ولاړ د ے. ټيليويژن، ريډيو او دې نه علاوه نور ټول سامان ورته حاصل د ے. ښۀ حسين او ښکلے زلمے خاوند ښۀ تعليم

یافته خوشے کور نور پکښې هیڅوك نشته. خو دوه ښځې او یو خاوند دی. بس دا مزې نهٔ دی نو نور څهٔ دی.

خشاکے په تصور شو خو زړ ئې ځان برابر کړو او غاړه ئې تازه کړه او چې مړی ئې لمده کړه په کټ کښې اوړقېدهٔ

خشاکے: اوجی اوجی دا خو بالکل مزې دی. زهٔ خو داسې خوشحاله شوم چې ډېر زیات. خپل چې سړے ښېرازه اووینی نو طبع ئې تازه شی او چې خفه ئې اووینی نو خفه شی خو دا دوئمه ښځه څنګه داسې تعلیم یافته هلك وادهٔ کړه

ملک: هغهٔ له مونږ په وړکوالی د هغهٔ د ترهٔ لور غوښتلې وه. د پښتنو دا رواج دے چې ښځه پرېږدی نهٔ نو هغهٔ دا یو وادهٔ په خپله مرضۍ اوکړو او بل پرې مونږ تاوان کړو. اوس د هغهٔ دوه ښځې دی نو هلك خوش نصیبه دے. دواړه ښځې داسې ګذاره کوی لکه دوه خویندې ښې خوشحاله دی او په یو بل ډېرې مئینې دی. او په یو بل مئین والے لا څهٔ کوې خو په خاوند هغه پښتنه مئینه ده او بله دا چې خپله ئې هم ده نو.

خشاکے: ولې هغه پرې نهٔ ده مئینه څهٔ حان خو په خپله په شپونکی ډېر مئین وهٔ او پرې د مانبام هغه....

ملک: (په خنداغوندې شو) هن مېلمه وایه کنهٔ دا

څنګ خبره وه.

**خشاکې:** ملك بابا هيڅ خبره نۀ وه خو د سړك په غاړه سره د يو ملګرى د خان ځوے ولاړ وۀ. مونږ مانېام ناوخته راغلو. د خان ځوى اجړه اوليده او پرې مئين شو زما تره غريب سړے وۀ. د دولت اوږے وۀ هغه ورله مانېام دوه درې زره روپۍ راوړې او په بيعه ئې ترې جينۍ واخسته.

**ملک:** ما خو اورېدلى دى چې د جينۍ پلار ترې هډو پيسې نۀ دى اخستلې.

**خشاکې:** ټول دروغ دى زۀ ورسره ووم ځکه چې زما د دغې ترۀ ځوے نشته او زۀ ورسره يو ځائے يم. زما پلار مړ دے او هغۀ زۀ لوئے کړے يم. او بيا دا واقعات خو ټول زما د مخې شوى دى.

**ملک:** بس بس چې تۀ وائې نو بيا ټيك ده. ما خو به چې کله دا خبره واورېدله چې د هيبت خان ځوے په ګوجره ښځه مئين شوے دے. نو بيا ئې په طرف نۀ يم تلے. نۀ مې هغه خور دلته راغلې ده او نۀ هغه هلك دلته راغلے دے. په دې سرېنى اختر کښې لا راغلے وۀ خو لاس مې ورسره هم نۀ دے ميلاؤ کړے هيبت خان راته ډېر ښۀ پښتون ښکارېدۀ خو چې د ځوى دا رضا ئې کړې ده نو ډېر بد راته ښکاره شوے دے. او چې ځوى له ئې بل وادۀ کولو نو هغه هم لکه د سترګې رپ وۀ هيڅ څوك ترې هم نۀ خبرېدل چې مونږ

خبرېدو و وادهٔ شوے وهٔ. بیا چې ئې ډوډۍ اوکړه نو بلنه ئې راکړه خو مونږ وې چې کار شوے دے اوس به ځهٔ لاړ شو. د وادهٔ ډوډۍ خو د ځانګو راتلو نه مخکښې خوړلے کېږی. بیا ئې چې نوسی پېدا شو. زیری له سړے راغے زېرے مې ورکړو او د تشې خولې مبارکی مې ورلېږلې ده هغې له هم مخامخ شوے نهٔ یم اګر چې خور رابانديې ډېره ګرانه ده او بله دا چې د هیبت خان لور مې خپل ځوی له هم غوښتلې ده. خو مېلمه طبیعت مې لږ سخت دے چې خفه شم نو بیا زر نهٔ شم خوشحالېدے.

**خشاکے:** او صېب ډېر د غېرت کار مو کړے دے. سړے چې د یو ځائے نه خفه شی. نو هغه ځائے له تلهٔ هم نهٔ دی پکار.

**ملک:** مېلمه ډوډۍ او خوره او هلکه دهٔ له به دلته کټ سم کړې ښهٔ قدر ئې اوکړئ سحر به چائے اوڅښی نو ځی به. او مېلمه هسې نهٔ چې بې چایو نه لاړ شې چائے به خامخا څښې. اوس لږ ارام اوکړه ستړے به ئې.

**خشاکے:** ښه جی ښه جی. زما کټ کوم ځائے دے هلکه چې اودهٔ کېږم. ډېر ستړے یم.

خشاکی پېښې خورې کړې خپل سامان ئې د سر نه لاندې کړو او څملاستو. په یو ژور سوچ کښې لاړو. چې عجیبه خبره ده. دا د اجړې ځوے شوے دے ځکه ما وې

چې ولې رانغله. دا به ماله څنګه انتقام واخلی. خپل ځوے به پرېږدی او زما پلار به اوګټی. دا نۀ شی کېدے. دې زما سره کړې وعده پوره نۀ کړه بلکې دوکه ئې ماله راکړه. زۀ به هم دا د ځوی په خوند پوهه نۀ کړم. هم داسې په جینۍ والی به ئې کونډه کړم چې بیا د خپل خاوند ځوے په ترخ کښې نیولے ولاړه وی او ژاړی او نا داسې ولې کوم ځوے به ترې پاتې کړم او دا به بیا را اوتښتوم. دا خو زما ښځه ده د خاوند خو نۀ ده. حق زما دے د هغۀ سره خو دا هسې بې نکاح ناسته ده. اجړې تا ډېر بد اوکړل کۀ چرې واقعی تا زما په بدله خان اخستلے وی نو زما محبت او مینې ته دې سپك کتلی دی زۀ به ستا دغه سترګې ړندې کړم. تا د دولت په ځائے غریبوالے پرېښودو. عزت دې پرېښودو. زۀ به دې د غاړې هار اوشلوم تا خانی عزت اوګڼله او شپونکی والے بې عزتی خو زۀ به ستا دا په نوم عزت په خاورو کښې اولړم. تا زما سره د مینې په رنګ کښې دهوکه کړې ده. دا دهوکه به دې په سر د شین اسمان تندر کړم. تا زما غېرت اوچېړۀ زۀ به ستا عزت اوچېړم. تا زما زړۀ ازار کړو زۀ به ستا زړۀ ټق اوچوم. کۀ تۀ وائې چې زما خاوند خان دے نو د غریب سړی لاس چا نیولی دی. هیڅ در درګاه ئې معلوم نۀ وی ګورو به زۀ به سبا درشم. نۀ به دې ښکلے رنګ وی نۀ بنګله، نۀ ښائسته خاوند نۀ ښکلے کور. نۀ وړوکے او معصوم ځوے زۀ

به په تا هغه قيامت راولم چې د دنيا خلق ورته حېران شي. دا زما اراده ده دا انتقام به ضرور اخلم. قسم مې دې په خدائے وی چې ضرور به دا انتقام اخلم. ماته انتقام له رالېږلې وې. خو اوس تهٔ ځان دې انتقام ته تياره کړه او په دې سوچ سوچ کښې خشاکے لګياوهٔ.

د خشاکی اراده څهٔ بدله غوندې شوه اووې وئيل. ولې خشاکيه دا څهٔ ضروری نهٔ ده چې اجره دې خالی دلته خوشحاله شوې وی. کېدے شی چې هغې موقع نهٔ وی موندلې ګنې دا خو عقل نهٔ منی چې يو ازاده ګرځېدونکې ښځه لکه د مرغی په پنجره کښې بنده کړې او دا دې خوشحاله وی. خبر خو په اول کښې به ښهٔ پوره معلومات اوکړم چې هغه څهٔ وائی. د خلقو په خبرو نهٔ غولېږم. په دې خبرو ئې زړهٔ له تسلی ورکړه او ودهٔ شو.

سحر وختی خشاکے راپاسېدهٔ. د خپل سامان تماشه ئې اوکړه. هر څهٔ ټيك وو. د شونتۍ دړه د کټ لاندې پرته وه د نمېرو ګېډۍ ئې سر ته د ګوګړو لوخے د کټ پښې ته او کونجے ډډې ته خوشحاله شو چې څه مال مې په ځائے دے. په دې کښې ملك هم را اووتلو.

**ملك:** څنګه مېلمه شپه دې ښه تېره کړه.

**خشاکے:** او صيب ستاسو مهربانی وه ډېره ښهٔ تېره شوه.

ملک: خونه ګله! دې مېلمه له به ښهٔ چائے راوړې ځکه چې د ے خو اوس شپونکے نهٔ د ے زمونږ خپل د ے.

خشاکی ښهٔ په مړه ګېډه چائے او څښکلې او بیا رخصت شو.

خشاکے: ملك صېب زهٔ به ورشم.

ملک: په مخه دې ښه دغه په لنډو کلے د ے.

خشاکے: ماته معلوم د ے صېب دا سې ډېر نا اشنا ترې نهٔ یم.

ملک: او کنهٔ تا سو خو چلېدلے خلق یئ.

خشاکے: (په خندا شو) او صېب او صېب

خشاکی د کور کلی لار اونیوله او څهٔ لږه شېبه وروستو کلی ته اورسېدهٔ. د کلی لوئے واړهٔ په بازار کښې ګرځېدهٔ. راګرځېدهٔ وړو چې خشاکے اولیدو نو یو تماشه ورته ښکاره شوه او ټول ئې خواله راغله.

واړهٔ: ماما دا نمېرخرخوې. اے ماما مونږ له ترې لږ راکړه.

خشاکے: نانا دا ما خانانو له راوړی دی.

یو وړوکے: خانان پرې څهٔ کوی. سړیه مونږ له ئې راکړه. دا خو بوئیولو له ښهٔ دی.

خشاکے: هر څهٔ له ښهٔ دی خو ستاسو د پاره نهٔ دی نو.

بل وړوکے: نو د چا د پاره دی. اها. ستا نه خو د ګوګړو

بېن هم ځی. دا شونتيې دې ماله راوړې ده که.

خشاکے: په قلاره مې پرېږدئ دا هر څۀ د خانانو دی.

يو هلك پکښې اووې چې اوس بجلۍ دی خلق په شونتيې څۀ کوی. د بجلۍ زمانې ته اوګوره او ستا شونتيې ته اوګوره او په مخه ترې لاړل.

خشاکی د خان د حجرې معلومات اوکړل او حجرې ته را دننه شو.

خشاکے: اے هلکه وروره دا سپی خوراك کوی کنۀ.

نوکر: کله نا کله خو کوی خو خېر تا به نۀ خوری.

خشاکے: دا څۀ پته لګی. کېدے شی چې او مې خوری.

نوکر: ازاد راځه پښه نیولے کېږه مۀ. نو نۀ به دې خوری.

خان: څوك دے هلکه د چا سره خبرې کوې.

نوکر: دا يو مېلمه دے جی.

خان: د کوم ځائے دے څۀ کار ئې دے ډوډۍ لـه راغلے دے کۀ چائے ئې نۀ دی څښلی کۀ.

نوکر: هلك مېلمه چی له راغلے ئې کۀ ډوډۍ له.

خشاکے: لږ خو کښېناستو ته پرېږده نامړده کنۀ. هلته په بازار کښې وړو سپېږمولـه راوستم او دلتـه د سپو لۀ ویرې لا ناست نۀ یم چې تا راباندې د سوالونو باران جوړ کړو. څۀ ډاکو دړته ښکارم. کۀ چرته بنیادم مو نۀ دے لیدلے.

نوکر: قاربړه مۀ خان تپوس کوو چې د چا سره ئې کار دے کۀ چا یو له راغلے دے.

خشاکے: ولې خان شته څۀ.

خان: او او مېلمه راځه زما سره دې کار دے څۀ؟

خشاکی تبرګے او نور سامان بهر پرېښودل او د مکر نه ټيټ شو. په ټيټو د خان څلامتی له وراغے.

خشاکے: زما سلام دے جی.

خان: ماتۀ اونۀ پېژندې مېلمه.

خشاکے: جی زۀ د اجړې د ترۀ زوے یم.

خان: اوهو دا خو تۀ د ډېر لرې نه راغلے ئې. هلکه نوکره راشه دۀ له چائے ورکړه او ډوډۍ راوړه او شپه دې کوم ځائے کړې وه. یواځې ئې کۀ نور څوك شته.

خشاکے: او صبب یواځې یم چائے مۀ راوړه په دې برکلی کښې مې ستاسو د هغۀ اوښی سره شپه وه. ډېر ښۀ سړے دے. ستاسو په سر ئې راته ډېر راشه درشه اوکړۀ. سحر مې د هغوئ په حجره کښې چائے اوڅښو او راروان شوم. لږ ساعت اوشو چې ستاسو کلی ته راورسېدم.

خان: ډېره ښه ده. څه بارې کۀ ستړے ئې نور ارام اوکړه بیا به ګورو.

خشاکے: داجی لږ سامان دے تاسو له مې راوړلے دے.

خان: څۀ دی د څۀ سامان.

خشاکے: یوه شونتی ده صیب لږ ګوګړ دی کونجے دے ستاسو د پاره مې دا لمسے راوړے دے او دوړو د پاره مې څۀ لږ ډېر متاکیان غوزان راوړی دی.

خان: هلکه نوکره تۀ راوړه دا لمسے.

نوکر لمسے راوړو د خان په مخکښې ئې کېښودلو خان ډېر خوشحاله شو.

واقعی ډېر ښکلے لمسے دے. دا خو زما شو او باقی سامان کورته ورکړه.

نوکر سامان کورته یوړو خشاکے څۀ شېبه غلے ناست وۀ بیا ئې اووې.

خشاکے: خان بابا زۀ به اجړه لیدے شم کنۀ.

خان: ولې نه ضرور لیدے شې خو اجړه دلته نۀ ده هغه د خپل خاوند سره په ښکته کور کښې اوسېږی.

خشاکے: په کوم ښکته کور کښې.

خان: تۀ نۀ پوهېږې زۀ به دې څۀ پوهه کړم خېر تۀ لږه دمه اوکړه بیا به درسره سړے لاړ شی. او د اجړې تر کوره به دې اورسوی خوښه دې ده کنۀ.

خشاکے: صیب مهربانی به وی زما بیرته ډېره تادی ده. ترۀ مې یو اځې دے او کنډك بیزې راته ښاتل دی. چې زۀ څومره زر واپس شم نو ښه به وی.

خان: ښه ده ښه ډېره تادی مۀ کوه. هلکه څوکیداره

ورشه هغه نائی راوله چې د ے اورسوی.

څۀ لږ وخت وروستو نوکر د خان د حکم مطابق نائی راوستو. نائی خشاکے د خان سره کړو او روان شو. بس تـه اوختل د غرمې وخت نیزدې کېدونکے د ے چې د کـالج پـه کالونۍ وردِاخل شول. نائی د خانِ د کوارټر د بهـر د ټلۍ پـه بټن زور کړو او دننه کړنګ اوشو مصری جان باهر لاړه اے نائی خبر د ے څۀ له راغلے یې.

نائی: او خبر د ے زۀ ځم تادی مې ده او دا مېلمه د سپین سر نه راغلے د ے. د اجړې بی بی د تـرۀ زو ے د ے د هغې سره ئې څه کار د ے. بیا ځی او اجړه بی بی خبر کړه چې ډېر سامان ئې راوړے د ے. یو ئې بابا له لمسے د کور د پاره ګوګړ، کونجے، شونتیۍ، نمبر او د وړو د پاره ئې غوزان راوړی دی.

مصری جان: ډوډۍ اوخوره بیا ځه.

نائی: نۀ شم ایسارېد ے سبا د جمعې ورځ ده او نیکان مې ډېر دی. د هغوئ وېښتو سنتو تـه حېران یم چې څنګه به ئې کوم. لاړم ترور د دې مېلمه ښۀ غور دار اوکړئ.

مصری جان خشاکی تـه پخېر اووې بیا لاړه. اجړه او پشمینه دواړه ولاړې وې په یو اواز یې اووې. ترور څوک وو څۀ چل د ے؟

مصری جان: اجړې ستا د تـرۀ زو ے خشاکے راغلے د ے

وائی چې دا وینم نو بیا به څم تادی مې ده.

اجړه د دې خبرې سره وارخطا شوه رنګ ئې زیړ شو. او لاس پښې ئې اورپېدل چې اوس به څۀ کېږی خوشے ځائے دے هسې نۀ چې دے مې خاوند ته څۀ نقصان اورسوی.

پشمینه: ولې خور تۀ خو داسې خفه شوې چې نااشنا چل اوشو خبر خو دے کنۀ.

اجړه: خبر به وی کنۀ هغه به خامخا څۀ پېغام راوړے وۀ. خو خفه په دې شوم هسې نه چې خان د دۀ په راتلو خفه شی.

پشمینه: سوال نۀ پېدا کېږی خان به ستا د خپلو په راتلو ولې خفه کېږی. څوك چې هاتیانړ ساتی نو دروازې غټې جوړوی چې ستاسره ئې وادۀ کړے دے نو د خپلو راتلو له دې زړۀ غټ کړی.

اجړه: خور تۀ به مې ملګرتیا کوې نو.

پشمینه: خامخا به دې زۀ ملګرتیا کوم او بیا په دې کښې د هغۀ د خفګان څۀ دی. هله ترور ورشه بالښت ورته کېږده او زمونږ د طرف نه ورته پخېر اووایه د ټولو لویو وړو د جوړ ناجوړه تپوس ترې وکړه.

مصری جان: مېلمه دواړه بیبیانې درته پخېر وائی او د جوړ ناجوړ تپوس کوی.

خشاکے: ټول جوړ وو. اجړې ته او نورو بیبیانو ته زما

سلام او تپوس اووایه. او اجړې ته اووایه چې بیرته خبر دے هیڅ فکر مۀ کوه. بیزې ډېرې زیاتې شوې دی. کاکا هم جوړ دے او تندار هم ښه ده.

مصری جان ورته بالنبت برابر کړو تۀ کښېنه خان به اوس راشی. زۀ تاله د چی بندوبست کوم.

**خشاکے:** نانا زۀ دا وخت چائے نۀ څښمه. خو صرف اجړه اینم او ځم تادی مې ده.

**مصری جان:** داسې په تادۍ چرته کېدے شی. خان به راشی او ا هغه دے راغے. داسې تېل دې جوړ کړے دے چې.

**خان:** ترور دا څوك دے.

**مصری جان:** دا د اجړې بی بی د ترۀ زوے دے.

**شوکت:** په خبر راغلې مېلمه. جوړ ئې بیرته خبر وۀ.

ما ما او مور دې جوړ وو. کښېنه چائے دې څښکلے دے. او د دې سره یې د یو بل لاسونه پرېښودو.

**خشاکے:** اوس په دې ساعت راغلم چائے مې زړۀ ته نۀ کېږی خو تادی مې ده ما وې چې اجړه اووینم او بیا ځم.

**شوکت:** ورشه ترور مونږ له ډوډۍ راوړه چې اوخورو بیا به ګورو.

مصری جان په تادۍ ډوډۍ راوړه. بهر ئې چائے جوړ کړو. وړوکی ناظرګی د اوبو انتظام اوکړو. په مېز ئې ډوډۍ

کښېنو دله.

شوکت: راځه خشاکیه دې کرسۍ ته کښېنه. خشاکے کرسۍ ته کښېناستو. شوکت ئې ډېر زیات دارومدار اوکړو. ښه ډوډۍ ئې اوخوړه او ښۀ ګپ شپ ئې اولګولو. چې ډوډۍ نه فارغ شول.

شوکت تپوس اوکړو.

شوکت: خشاکیه څۀ پروګرام دې دے.

خشاکے: زۀ به خانه ځم ځکه چې هلته کارونه ډېر دی او کاکاجی یواځې دے خو کۀ تۀ نۀ خفه کېږې نو چې اجړه اووینم.

شوکت: ولې به خفه کېږم هغه هر څۀ چې ده خو ستا د کوړمې ده اودربږه تۀ.زۀ کورته ځم نو راځم.

شوکت کورته راغے دواړۀ ښځې ورته رامخکښې شوې خو د اجړې وارخطا غوندې وۀ. شوکت خپل واړۀ ځامن وار په وار ښکل کړل او بیا ئې پشمینې ته اوکتل.

تۀ خو هډو دا شپونکے د غېږې نه کوزے نۀ.

پشمینه: دے په ما پورې اونخلی هډو خپلې مور له ځی نۀ او دغه هلك مالـه نۀ راځی د اجړې سره خوشحاله دے

شوکت: زۀ دا هم د خوشحالۍ خبره ده چې ستا سو ځامن د یو بـل سره خوشحاله وی. ښه ده زۀ د بابا خواله

ورځم د هغهٔ سره د وړو د سنت کېدو په باره کښې خبره کوم. د هر ښکلے موسم دے وړو ته به پکښې څهٔ نقصان نهٔ رسی زهٔ هلته ورشم او اجړه به د خپل ورور سره اووینی.

پشمینه: کورته به راشی کنهٔ.

شوکت: دا خو د دې خوښه ده ما ته هیڅ اعتراض نشته خو.....

اجړه: نانا زهٔ ورپسې دغې بهر کمرې ته ځم. هلته ورسره به خبره اوکړم.

شوکت رابهر شو اووې ئیل.

شوکت: مېلمه زهٔ کلی ته ځم شپې له به انشاء الله راشم. تهٔ به ځې نهٔ ستا به دلته شپه وی چې ترڅو زهٔ نهٔ یم راغلے نو ځې به نهٔ او هن اجړه به درسره دلته په دې کمرې کښې اووینی.

د دې خبرې سره شوکت موټر روان کړو لاړو. او خشاکے په کمره کښې دننه کښېناستلو. چې اجړه به کله را اوځی. اجړې خپل ځوے په ترخ کښې نیولے راله او د خشاکی لاس ئې ښکل کړو. ښه ده چې راغلې زما مو هډو د مړې ژوندی تپوس نهٔ کولو. ځوك داسې كار كوی چې لكه د خوشې ګډې یو پردی فصل ته پرېښودلم او د فصل مالك اوتړم.

خشاکے: وخت مهٔ تېروه خبره کوه ناوخته دے. ماته

واپس تلل پراتۀ دی پروګرام څۀ دے.
اجړه: د څۀ پروګرام ماته خو بالکل پته نشته.
خشاکے: ښه یعنې اوس دې پروګرام هېر شو. تۀ په څۀ نیت راغلې وې.
اجړه: په تېزه مۀ وایه. دا وخت د دې خبرو نۀ دے سبا به ګورو تۀ ولې دومره تادۍ راخستلے ئې.
خشاکے: عجیبه صبر دے دوه کاله تېر شو د پردی سړی نه دې څوے اوشو. او لا نور هم ناکام اوکړم.
په دې کښې پشمینې اواز اوکړو چې اجړې راشه چائے یوسه. اجړه راغله چائے ئې راوړو.
اجړه: هن تۀ چائے اوڅښه سبا به بیا یو ځائے شو هر څۀ په لږ وخت کښې نۀ کېږی.
خشاکی چائے اوڅښو شېې ته ایسار شو. په سوچ سوچ یې شپه رالنډه کړه. د شپې خملاستو او مخ ئې پټ کړو اجړه ترې کورته لاړه.
پشمینه: اے جینۍ څه ئې وې کور خېر دے.
اجړه: اوو په هغو څۀ بلا لګی.
د اجړې مرۍ اوچه وه او وار ئې خطا وۀ اوس د اجړې مخې ته هغه ټول واقعات راغلۀ او په دوه کښې حېرانه وه چې اخر څۀ اوکړم. د خاندان د عزت نه لاس اووینځم او کۀ د دوئ دا نېکۍ او احسانونه هېر کړم.

اخر ځۀ اوکړم د انتقام نه خو مې د مینې پردې چاپېره شوې دی زۀ هغه پردې څنګه پرېکړم. څنګه پرېکړم.

او دلته خشاکے شپې ته ایسار شوے وۀ. پټې سترګې او وینې زړۀ سوچونه کول. چې په دې کښې خان واپس راغے او خشاکی ته ئې په خندا خوشحالی کښې اووې.

خان: اجړه دې اولیده خشاکیه.

خشاکے: او صېب او صېب اومې لیده ډېر خوشحاله شوم هغه دلته ډېره خوشحاله ده.

خان: ښه ده خو چې ته خوشحاله شوې نو.

خشاکے څملاستو ځکه چې خان کورته وختی لاړو. خشاکے ډډې په ډډې کېدۀ د انتقام لمبې ئې په زړۀ بلېدې یو ئې د پلار د مرګ قیصه مخې مخې ته کېده او بل دا چې خپله ښځه ئې د بل په کور کښې اولیده چې ځوے ئې په ترخ کښې وۀ. او بل ئې دا سوچ وۀ چې نن شپه زما ښځه د بل سره سبا کوی. خو خبر اوس هیڅ نۀ شی کېدے. واقعی د تادی خبره نۀ ده ماله صبر پکار دے چې اجړه راته خونه اوښائی بغېر د هغې د صلاح نه هیڅ نۀ شی کېدے. نو سبا به ضرور انتقام اخلم خو چې اجړه به زما ملګرتیا اوکړی او کنۀ. او کۀ چرې اجړې مې ملګرتیا اونۀ کړه نو زۀ به اول انتقام د اجړې نه اخلم او بیا به نور موقعې ته ګورم کۀ لاس

مې برکېدهٔ نو مخکښې به هم تګ کوم. او دې سره ئې څادر په ځان واچولو او سترګې ئې پټې کړې چې سحر شي ګورم به.

او اجړه په دې سوچ کښې ده چې ګناه زما د ترهٔ وه. زهٔ د یو ګناه ګار بدل څنګه واخلم دا نهٔ شي کېدے.

# اجړه

شـــوکت پـــه خنـــدا پـــه هـــوس کورتـــه راغـــے او د خوشحالۍ په ډك اواز يې اووې.

شوکت: اجړې او پشمينې خبر شوئ کنهٔ د بابا دلـې سره مې د وړو د سنتو په باره کښې خبره اوکړه. هغوئ وې چې رحمت او شفقت د بلې جمعې په ورځ بـه سنتوو. ما وې چې زمونږ په کور به سنت وی. خو هغوئ اووې چې نـه دلتـه به وی. خو ما وې ښه ده چې ستاسو خوښه ده نو دلتـه بـه ئـې سنت کړو. ځان تيار کړئ کۀ خبر وی نو د جمعرات پـه ورځ به بره ځو. اجړې کټ دې سم کړے دے.

اجړه: او کټ تيار دے خو....

شوکت: خو خو په کښې څۀ دی. زۀ لږ کتاب ګورم بيا راته په کالج کښې تکليف وی اکثر او هغـه شين چائے تيار کړه او هغه مېلمه له دې چائے ورکړے وو کنۀ...

اجړه: او او ځـښکلی ئـې دی وودۀ بـه وی. تـۀ څـه

کمرې ته څه چائې پخوم نو دراغلم.

اجړه بیا په سوچ کښې شوه.

هسې نه چې د انتقام د پاره خشاکې چرته د شپې حمله اوکړی خان یوازې دے او څۀ نقصان جوړ کړی کۀ پشمینه خبر کړم او خبره هسې هڼ ته اورسېږی او خان چرته مېلمه ته څۀ اووائی څۀ اوکړم حېرانه یم. پشمینې ته ئې غږ اوکړو.

اجړه: پشمینې خور خفه کېږه مۀ نن تۀ کمرې ته لاړه شه. په ما بریخ دے او دا سر مې داسې خوږېږی ډېر تکلیف راته دے.

پشمینه: نۀ خورې خپل وار به اخلې اوس به ماته قار شی. زۀ ورشه چائې خو یو سه کنۀ.

اجړې چائې راوړو او خفه غوندې کښېناسته.

شوکت: اجړې خبر دے کۀ نن دې مزه نشته د ترۀ ځوی دې درته ګورے بد خبر راوړے دے کۀ رنګ دې لا ځائې له نۀ دے راغلے او وار دې هم خطا دے.

اجړه: نه هیڅ نشته هلته بالکل خېریت دے. خو نن لږه جوړه نۀ یم. بریخ راباندې هم دے او په سر مې هم درد دے. دا خبته مې هم لږه خوږېږی کۀ تۀ خفه کېږې نۀ نو پشمینه بی بی به نن دلته ځملی او زۀ به بهر ځملم. د شپې پاسېدل کښېناستل به تا تنګ کړی.

شوکت: ماته څهٔ اعتراض دے دا خو ستاسو د خپلې مرضۍ خبره ده. خدائے دې همېشه تاسو په یو بل خوشحاله لری او د یو بل سره خوشحاله اوسئ.

اجړې پشمینې ته د شوکت د خلې سوال جواب اوکړل پشمینه کمرې ته لاړه او اجړې منډۀ ته څېلمه کټ سم کړو. تبر ئې سرته کېښودلو او ویښه کښېناستله. هسې نهٔ چې خشاکے د شپې چرته په دېوال راواوړی. او کله په دې سوچ کښې شوه چې څهٔ اوکړم حېرانه یم. د پلار خبره اومنم او کهٔ د دوئ د مینې اقرار اوکړم خو نا دا څهٔ ضروری نهٔ ده. زهٔ خو د چا ښځه نهٔ اووم. په وړکوالی ئې خشاکی له ورکړې ووم ښځه خو په نکاح ښځه کېږی او نکاح زما د شوکت سره شوے دے او بل دا چې د هغوئ ټول خاندان په ما دومره اعتبار کړے دے چې څوك به ئې په ټوله دنیا ورنهٔ کړی. کهٔ زما د لاسه شوکت څهٔ شی نو هر سړے به زما د مرګ نه وروستو زما ځوی له پېغور ورکوی چې ستا مور د کچه کور ښځه وه. ځکه ئې ستا پلار مړ کړو. دا دې هر سړے په خپل کور راولی. شوکت د خپل کور یك یواځې چراغ دے کهٔ دے مړ شو نو ټول کور به تیارهٔ شی. او د ټول خاندان به سترګې ړندې شی. مور ابۍ څومره ښه ښځه ده کلثوم څومره خوږه خور ده. او پشمینه خو د نهٔ هېرېدو ښځه ده. هسې به خلقو وې چې د کلی خلق ډېر چالاك وی. او ډېر

دهوکه باز وی خو اوس ماته پته اولګېده چې چالاك او دهوکې باز مونږ دا غرسنی خلق یو. نۀ خپل عزت پېژنو او نۀ خپل پردے. کنۀ اوګوره تۀ ګوجر ولې مړ شو. ما خو پوره معلومات کړی دی. مصری جان ترور راته پوره پوره قبضه کړې ده. چې هغه هلك وۀ او زۀ جینۍ وم او لکه د اوړی سپی ئې ماته لاس را واچولو ما د خپلو خلاصېدو کوشش اوکړو. خو اونۀ شوه نو واکدار پرې ډز اوکړو او مړ ئې کړو. نو دا ګناه د چا وۀ. دا هم د هغۀ ګناه ده ماته د هر څۀ پته ده. زۀ اوس د دې کور عزت یم. د خان غېرت یم او د خپل ځوی شفقت یم. زۀ په داسې رسو کښې بنده شوې چې خلاصېدۀ مې ډېر مشکل دی زۀ د دې کور نه بل خوا نۀ شم تلے. زۀ د دوئ سره داسې بلده شوې یم لکه چې د مرغۍ بچوړے سرے راوړی او د کور د مالکانو سره عادت شی. او بیا ئې د نورو مرغو سره الوتو یا ګرځېدو ته زړۀ نۀ کېږی.

زما مثال اوس د هغې مرغۍ دے. چې په پنجره د کور د خلقو سره عادت شوې یم خشاکے هر څۀ چې وائی خو زۀ به ئې په خوږه پسته رخصت کړم.

خو بیا اجړې ته سوچ راغے هسې نۀ چې دے په تا د ښځوالۍ دعوه اوکړی. او تاته څۀ نقصان اورسوی. خو خبر هر څۀ چې کېږی زۀ به د دې کور د پاره هر قسم قربانی کوم. دوئ زما د پاره خپل عزت بائیللے دے. شوکت خپل کور

پرېښودلے دے. خپله خور مور ئې پرېښودلې دی. پشمينې بنتون قبول کړے دے. زۀ به هم دا هر څۀ ياد لرم خبر دے کۀ شپونکې يم. او دا بۀ دنيا ته اوښايم چې يوې شپونکې ښځې د خپل خاوند د پاره څۀ اونۀ کړل.

چې هيله کش کش به کېدو اجړه به زر راپاسېده او د کور معائنه به ئې اوکړه چې چرته څوك رانۀ شی. ناوخته وخت دے اجړه کله ناسته او کله ولاړه. مصری جان دا هر څۀ ليدل کتل خو اخر ئې تپوس اوکړو.

**مصری جان:** اجړې څۀ چل دے نن خو دې ټوله شپه ويښه تېره کړه. کله کښېنې او کله پاسې.

**اجړه:** په ګېډه مې درد دے او سر مې خوږېږی څنګه به ووده شم.

**مصری جان:** هلم درله تاوده کړم کۀ.

**اجړه:** نانا هيڅ ضرورت نشته خو کۀ يو کار دې اوکړو او دا وړوکے هلك دې پشمينې له ورکړو نو چرته دے راته ويښ نۀ شی.

خوخبر اجړه په خپله راغله او پشمينې ته ئې اواز اوکړو.

خور يا خور هن دا رحمت واخله اوده دے په ما درد ډېر دے هسې نه چې دے ويښ شی بيا به ټوله شپه ژاړی.

پشمينې رحمت واخستو ښکل ئې کړو او خپلې خوا

ته ئې څملوۀ.

اوس د اجړې د زړۀ نه يو غم لرې شو چې څه څۀ پېښېږي نو يوازې خو به يم ټوله شپه عاجزې په ناستې او ولاړې تېره کړه چې څۀ به کېږي خو هيڅ اونۀ شو. سحر شو نو اجړې اوبۀ هم ګرمې کړې وې او چائې هم تيار کړې وۀ.

خان دې د غسل خانې نه رابهر شو.

خان: چائې تيار دے.

اجړه: او ستا نه قربان شم چائې تيار دے.

دوئ په شريکه چائې اوڅښو او خشاکې له يې ډك چينك او يوه پراټه راواخستله او مصرى جان ورته اووې چائې اوڅښه نو بيا به ګورو. تۀ ولې دومره تادى کوې.

خشاکے: تاسو خانان خلق يئ په بنګلو کښې اوسئ. زما بيرته کاروبار دے يو بوډا ترۀ مې دے او يوه تندار په سپين سر به هغه څۀ کار اوکړى. د بيزو کنډکو نه دى د هغو غور پکار دے. دا يوه شپه خو ما هم زياتے اوکړو. کنۀ پکار وه چې زۀ پرون تلے او نن خو به خامخا ځم.

مصرى جان: تۀ خو چائې اوڅښه کنۀ دا خو لا وختى دے. خان به را اوځى د هغۀ سره به خبره اوکړې.

خان سوټ واخستلو بهر شو وړوکى نوکر له يې پيسې ورکړې چې سودا راوړه زۀ کالج ته ځم. خشاکيه تۀ پاتې شه بنه تلے نۀ شې. دا يو څو ورځې به دلته ئې. د وړو

سنت دی د هغې پورې تلے نۀ شي.

خشاکے: نانا خان صیب زۀ ښن ځم پاتې کېدے نۀ شم.

خان: ولې دومره کلك ئې مۀ ځه هلته په غرونو کښې به څۀ کوې. دلته به یو څو ورځې تېرې کړې بیا به ځې.

خشاکے: ډېره به ښه وه خو ډېر ضروری کارونه مې دی. کۀ ما رخصت کړئ نو ښه به وی.

شوکت: چې خامخا ځې نو ښه ده کۀ اجره دې بیا لیده نو ما ورته وئیلی دی چې دے اووینه او هن دا سل روپۍ دی خپلو وړو له به پرې څۀ واخلې.

خشاکے: زما واړۀ کوم دی خان ګله.

شوکت: دا خو مې هسې خبره اوکړه. دلته چرته راغلے نۀ ئې نو کرایه خو واخله.

خشاکی پیسې جېب ته اوغورزولې. شوکت کالج ته رخصت شو. او وړوکے نوکر سودا له لاړو خشاکی مصری جان ته اووې. زۀ اجره اینم او بیا ځم. مصری جان اووې اودرېږه چې وړوکے نوکر راشی. غوښه راوړی او مونږ به ورته د چی کاروبار خلاص کړو لوخی موخی به اووینځو نو بیا به ئې اووینې.

څۀ ساعت پس مصری جان اجرې ته اووې چې خشاکے ستا سره اینی شوکت ورته د تلو په وخت کښې اووې چې دا سل روپۍ واخله او کۀ اجره دې لیده نو وینه

ئي

اجړه: هسې سر زوري دي اوس د يه ما څه کوي او زه په دۀ خو شپه ئي اوکړه نو ځي دي کنه.

پشمينه: نا خورې ولې لږې وريږې ورله اوتړه. چائے ګوړه او خامخا ئي اووينه ګوره ته اوس د مور پلار تپوسونه به ترې اوکړې. د خپل طرف نه به ورته دعا سلام اوکړې

څۀ په ډېرو خبرو پشمينې اجړه مجبوره کړه او بهر ئي د هغۀ ملاقات له اولېږله دوئ په کمره کښې کښېناستل او پشمينې کور چائے باندې کړو چې لسو بجو چائے پرې هم اوڅښلې او د دې سره سره وړوکے نوکر هم را اورسېدۀ غوښه او سبزي ئي د بازار نه راوړه. او پۀ کمره کښې اجړې او خشاکي خبرې ګرمې کړې وې.

اجړه: خشاکيه تۀ زما نه څۀ خبر ئې. زۀ خو دلته ښۀ خوشحاله په مزو او خندا تقاله کښې ژوند تېروم ماته هيڅ تکليف نشته زۀ په جنت کښې اوسم. تۀ چې څۀ وئيل او کول غواړې هغه زۀ نۀ شم کولے. زۀ د يو وفادار خاوند ښځه يم. د يوې ښې ښځې بن او د يوې همزولې خور ورندار يم او د داسې ښځې انګور يم چې هغې زما د پاره هر څه کړي دي. تردې پورې چې د خپل زوئ جدائی ئي قبوله کړې ده.

خشاکے: تۀ ښځه ئي کۀ دا هر څۀ درسره بل چا اوکړل

نو د هغهٔ به شي. ما خو دي اول پلار ته وئيلي وو چې اس، ټوپك او ښځه چې د چا په لاس كښې وی نو هم د هغهٔ وی خو ستا د پلار په تا ډېر اعتبار وهٔ نو.

اجړه: زما پلار څهٔ خبروهٔ. چې ستا پلار خه کړی دی. ستا پلار چې د کومې ښځې په سر مړ دے هغه اوس ژوندۍ ده. خو بوډۍ ده او هغه زمونږ د کور نوکره ده. د هغې نه ما پوره پوره تپوس کړے دے. هغې لا راته پېغور راکړو چې شپونكيان خو داسې ناكاره خلق دی چې يوه ورځ زمونږ دروازې له يو شپونكے ډوډۍ غوښتلو له راغے او ماله ئې ناكاره لاس راوړو. ما خپل ځان بچ كولو. نو واكدار زما د بچاؤ د پاره په هغهٔ ډز اوكړو. او مړ ئې كړو. ما خبره په خندا بدله كړه. چې هغه به چرته لېونے وهٔ. تهٔ اووايه خشاكيه په داسې مرګ د مړ شوی پلار بدل تهٔ اخلې او بيا په ما.

خشاكے: انتقام پرېږده دا د خانانو د سر ټوپۍ او د هغوئ سبرۍ ده. تهٔ خو زما ښځه ئې كنهٔ اوس تهٔ زما سره لاړه شه.

اجړه: دا څنګه كېدے شی. زهٔ به ستا سره.څنګه لاړه شم اوس زهٔ ستا نهٔ بلكې د شوكت ښځه يم.

خشاكے: دا هسې دهوكه ده تهٔ د هيچا ښځه نهٔ ئې تهٔ خپل پلار ماله راكړې يې.

**اجړه:** او دا ټهیك ده خو تا زهٔ د خپل پلار په بدله کښې شوکت له ورکړم. کهٔ تهٔ سړے وے نو تا به انتقام د ښځې په لاسونو نهٔ اخستو.

**خشاکے:** تهٔ خو هسې هم په شوکت مئینه شوې وې نو.

**اجړه:** کهٔ زهٔ مئینه شوې ووم خو خرڅېدے شوم. دا صرف تهٔ وې چې زهٔ دې خرڅه کړم. او د پلار بدله دې په ما اخستله. واقعی زهٔ هم په دې نیت راغلې ووم خو دلته ما د هغوئ صداقت او شرافت ته اوکتل. د هغوئ مینه محبت مې اولیدل نو ستاسو د غرېزو خلقو نه مې کرکه اوشوه. او وایم چې دا شپونکیان ګوجر خومره نمك حرامه دی چې د چا خوری د هغوئ سروهی اوګوره تهٔ نمك حرامه تا نن دلته شپه کړې ده اودې خوړل اودې ښکل سل روپے دې په جېب کښې کېښودلې او لا بیا هم د هغوئ بد غواړې.

**خشاکے:** هر څهٔ چې وائې خو دا زهٔ نهٔ شم زغملے چې زما ښځه دې د بل په کور کښې وی.

**اجړه:** دا ارمان به دې پوره نهٔ شی. ځکه چې زهٔ اوس د یو ځوی مور یم. اوګوره هغه خومره ښکلے هلك دے تهٔ به دا اوغواړې چې زهٔ هغه پرېږدم او ستا سره لاړه شم او تهٔ به ما بوځې څنګه دا خو اووایه کنهٔ.

**خشاکے:** دا زما کار دے ستانهٔ دے چې زهٔ تا څنګه بوځم.

اجړه: اخر کنهٔ تا خو به هم څهٔ طریقه سوچلې وی کنهٔ ما خو پوهه کړه.

خشاکے: په دې کنبې د طریقې څهٔ دی تهٔ زما ښځه ئې زما سره ښهٔ په ډاګه لاړه شه.کهٔ چا څهٔ اووې نو تحصیل ته به لاړ شو. ستا په سر به ما څوك وژنی خونهٔ.

اجړه: دا خیالات د زړهٔ اوباسه خشاکیه دا خبرې اوس بې ځایه دی.

خشاکے: ښهٔ سوچ اوکړه زما دا راتلل به بیا نهٔ وی ګورے.

اجړه: هن تهٔ چائے اوڅښه پشمینې بی بی راوړے دے. ساه ازاده کړه او په ارام شه نورې خبرې به د چائے نه وروستو اوکړو.

خشاکے: ستا څهٔ مطلب دے. پاکه خبره راسره اوکړه.

اجړه: پهٔ لنډه مې پوهه کړے ئې زهٔ د دې کور عزت یم خپل زوئ له دا پېغور نهٔ شم جوړولے چې سبا به خلق زما پاتې شوی ځوی ته وائی چې مور دې غریبه ښځه وه د فقیرې ښځې ځوے ئې مور دې اوتښتېدله زهٔ خپل ځوے د سترګو اوچتولو نه نهٔ اوباسم.

خشاکے: اوس هم ډېر وخت دے اجړې زما په رضا فېصله اوکړه په دې کښې دې خېر دے چې زما سره لاړه شې ګنې ګوجرې ماته منتونه کړی دی. چې ما واخله خو تهٔ

ماته د هر چا نه زياته ښکاريږي.

اجړه: دا هر څۀ ماته معلوم دی خشاکیه. خو فېصله دي په هغه وخت بائيللي ده چې زۀ دې د خپله لاسه د شوکت د پاره د هغۀ په نوکر دلدار خرڅه کړم. کۀ ستاسره د خپل عزت احساس او فکر وے نو زۀ به دې ولې خرڅولم تا به خپل سر د خپل پلار په بدله ورکړے وۀ خو ښځه به دې نۀ ورکوله فايده دې په دې کښې ده چې چپه خلۀ رخصت شې او دلته هډو دا غږ اونۀ کړې چې زۀ لا هم ستا کوژدن کړې ښځه يم. او تۀ زما خاوند جوړېدونکے وې. هره جينۍ په نکاح د سړي ښځه کېږی او نکاح په ما د شوکت دے نۀ چې ستا.

خشاکے: اجړې دا ستا اخرى فېصله ده او بدلېدے نۀ شی.

لږ وخت دے زۀ رخصت کېږم. تش لاس مې مۀ لېږه. ځکه چې هلته مې ګوجره او ستا مور پلار په طمعه دی. ما وئيلی وو چې دا به ضرور زما سره راځی. د هغوئ هم دا يقين دے چې دا مونږ څۀ له لېږلې ده هغه کار به پوره کړی او واپس به شی.

اجړه خشاکيه زما چې په زړۀ کښې څۀ وو هغه اوس نشته دهوکه تاله نۀ درکوم. لويه لار دې په مخه ده تلے شې او مور پلار ته مې اووايه چې کۀ چرې هغه په دې خيال

راځي نو چې دې طرف ته هډو اونۀ ګورې او دا دې اوګڼي چې اجړه مړه ده او زۀ به دا اووايم چې زما مور پلار مړۀ دي زما هيڅوك نشته. او نۀ وو چرته.

خشاکے: بس دا اخرى فېصله ده ستا.

اجړې خپل ځوے په اوږه واچولو او پاسېده. د دې سره خشاکې چاړه د بډې نه رابهر کړه او د اجړې په اوږه ئې ګذار اوکړو. سخت اولنډ ګذار وۀ. ماشوم او نازك هلك د ملا نه چاړه اووتله او د اجړې په سينه کښې ښخه شوه. د اجړې د خلې نه چغه اوختله. وئ الله مړه شوم. راشئ خلقه دا دردناکه چغه پشمينې واورېدله چې کمرې ته نزدې شوه نو اجړه ئې په وينو کښې لړلې اوليده. اجړې مړاوې سترګې پشمينې ته راواړولې او ورته ئې اووې.

خشاکې ... په چاړۀ اوو ها.. هالم.

پشمينه پښتنه پېغله وه حوصله يې اوکړه او د ګاونډې کمرې نه ئې چريز ټوپك راواخستو. خشاکے تښتېدلے وۀ. خو څۀ ورته د هغې کلى لارې کوڅې نۀ وې معلومې او بل ئې حوصله بائيللې وه. د دې وجې دے د شوکت د کور په چنه راتاؤ شو او بيا د کور مخې له راغے.

پشمينې ټوپك ته کارتوس اچولے وۀ او د کور مخې ته ئې ګېر چاپېره سينکول ناڅاپې ئې خشاکے اوليد د خشاکې شاوه او پشمينې پرې د شا د لورې غبرګې نلې

اوډزولي او پړمخي ئې د کوټې په ګنده نالۍ کېنې را
اوغورځولو. په منډه کورته راغله نوکر ته ئې اووې چې
زغله خان خبر کړه. نوکر په منډه منډه کالج ته راغی. حلیم
صېب مخامخ ولاړ وۀ. او ورته اووې هلکه وړوکیه څۀ کوې
څۀ چل دے چې په منډه منډه رازغلې. خبر خو دے کنۀ دا
ډز ولې اوشو.

نوکر: او ډزا اجړه مړه. خان کورته (د وارخطایۍ
الفاظ یې اووې.

حلیم: وارخطا غوندې شوکت ګورے.

نوکر: او او خان ګورم.

حلیم صېب ورمنډه کړه شوکت ئې د کلاس نه رابهر
کړو. ورشه تۀ ستاسو د کورسره ډز اوشو. چې څه چل دے
شوکت وارخطا غوندې راغے چې وې کتل نو د
دروازې په مخکښې خشاکے ویشتلے پروت دے. کورته
راغے. پشمینې یا پشمینې.

پشمینه: (په ژړه غونی اواز
دننه راشه.

شوکت دننه راغے چې وې کتل نو اجړه په وینو کښې
لړلې پرته ده. ورسره رحمت د وینو سور لکه د رژېدلی ګل
مړ پروت وۀ. د اجړې خبرې لا په خله وې. خان ته ئې اووې.
خانه! ما خپل فرض پوره کړل دوئ زۀ د بدل اخستو

د پاره تاله درکړې ووم. خو ما ستاسو نېکۍ هېرې نۀ کړے شوې. ماته ګناه نشته. ماته اوس بخښنه کوئ.

خشاکے قاتل وۀ. ښه ده چې خوے مې راسره ملګرے شو. د پشمينې به ډېر خيال ساتې دې زما سره ډېر ناکامونه کړی دی او د دې سره د اجرې روح لاړو او سوړ جسم پاتې شو.

پشمينه پرې راپرېوتله. اجرې! زۀ دې يواځې پرېښوم. اوس به څۀ کېږی. ګورے چې بيا به زمونږ د کور زوړ خوند وی او کنۀ يه نامردې چې رحمت خو دې پرېښودلے وے کنۀ.

د شوکت په مخ هم د اوښکو سېلاب راسم شو واقعی اجرې مونږ دې ډېر زر نيمګړی پرېښودلو. کۀ تا زۀ بېګاه خبر کړے وے نو ما به د خشاکی هډوکی چيچلی وو. اوس هيڅ نۀ کېږی چې څۀ خدائے ته منظور وو هغه اوشو. اودرېږه چې زۀ موټر تيار کړم.

شوکت موټر رابهر کړو او د اجرې او رحمت لاشونه ئې پکښې واچول. پشمينه او مصری جان ورسره کښېناستلې او د کور مخه ئې اونيوله دوئ بر کلی ته اورسېدل. هېبت خان د موټر غرهر واربدۀ. دۀ اووې چې ګورے څۀ چل دے. شوکت خو بيا راغے ګورے د ورو سنتو پروګرام دے کۀ.

شوکت د موټر نه راکوز شو. واکدار ته ئې اواز اوکړو ماما یوکټ راوړه او مخ ئې په رومال پټ کړو ځکه چې دومره اوښکې بهېدې چې د اودرېدو نهٔ وې.

واکدار: خېر دے خانه څهٔ چل اوشو؟

شوکت: تپوس پرېږده ماماکټ راوړه.

خان هم په تادۍ د موټر خواله راغے تپوس یې اوکړو نو شوکت ورته ټوله قیصه تېره کړه خان حېران شو چې عجیبه خبره ده. پرون دلته راغے داسې په قلاره هلك وهٔ چې په مخ ئې هډو د دې خبرې څهٔ اثر نهٔ وهٔ.

جنازې ئې د موټر نه راکوزې کړې.

پشمینه! شوکت د کټ سره لاړل کلثوم او مور ئې رامندې کړې دا څهٔ اوشو څوك دی وئ خدایه دا خو اجړه ده.

شوکت: او مور دا د هغې جینۍ جنازه ستا کورته راغله د کومې ډولۍ چې ستاسو دې کورته نهٔ پرېښودله. اوس خو به ئې جنازه پرېږدئ کنهٔ اجړه یرېدلې ده څوك ئې خپل کور ته نهٔ پرېږدی. د دې وجې نه خو هغې د سفارش د پاره د ځان سره وړوکے راوستلے دے او د سفارش د پاره ئې د ځان سره هغه بل ځائے ته هم وړی کوم ځائے کښې چې به خدائے قاضی وی.

د کلی محلت خلق خبر شول ټولو ځان ښهٔ پوره پوره د واقعې نه خبر کړو. خلقو ډېر اوژړل او د ډېر لوئے خفګان

اظهار ئې اوکړو. ځکه چې د مشر خان يوه انګور او يو نمسے د يو ظالم سړی د لاسه په يوه ورځ مړۀ شو. ټولو خلقو په اجړې افرين اووې چې واقعي شپونکۍ ښځه ده. خو د پښتنې ښځې نه ئې زيات نوم اوګټلو. او په تېره تېره ئې په پشمينې افرين وئيلو چې د حوصلې نه يې کار اخستلے دے او سړے ئې مړ کړۀ ښۀ ده چې دا دهوکه باز دروغژن خو ترې ژوندے لاړ نۀ شو.

پس د ماسپښين نه جنازې تيارې شوې اجړه هم په هغه بڼ کښې ښخه شوه او ځوے هم. په کور کښې چې دې پړاؤ اچولے وۀ. او بيا د دغې ځايه دې کلی ته د ناوې په شکل کښې راغلې وه. د ناوې توب وخت په بل کلی کښې تېر کړو. البته هغه بڼ له ئې خپله خاوره راوړه او هم په هغه بڼ کښې ښخه شوه.

شوکت سلګو نيولے واپس شو او د پشمينې خو په سترګو د اوښکو وار نۀ موندے کېدۀ. کلثوم لکه د ماشومانو خپل مخ وهلو.

ډېر لوئے ماتم تېر شو خو بيا هم د کلی خلق لاړل خپل کارونه ئې شروع کړل. شوکت خپله کډه واپس بيا کلی ته راوړه ځکه چې اوس خو اجړه نۀ وه چې چا په دې کلی کښې نۀ پرېښودله. د اجړې په دې کور کښې نۀ پرېښودل يوائې د شوکت نۀ بلکې د هيبت خان د شوکت د مور، د

واکدار د دلدار دلې په زړهٔ یو وزن دار ارمان او یو نه

ورانېدونکے داغ پاتې شو